# د کتاب پوښتۍ


CENTRAL INTELLIGENCE AGENCY
د سي آی اي پټې جګړې
(له ويتنام تر افغانستانه)
ليکوال: پيټرهارکليرود
ژباړه او سريزه: محمد زبير شفيقي
THE SECRET WARS
OF CIA
Translated by: Mohammad Zubair Shafiqi
Spogmai
۱۲

بسم الله الرحمن الرحیم

# د سي آی اې پټې جګړې

## (له ویتنام تر افغانستانه)

لیکوال: پیټرهارکلیرود

ژباړه او سریزه: محمدزبیر شفیقي

## د کتاب ځانګړنې

❖ نوم- د سي آی اې پټې جګړې

❖ لیکوال- پیټر هارکلیرود

❖ ژباړه او سریزه- محمدزبیر شفیقي

❖ کمپوز او ډیزان- انجنیر محمدشفیع وردګ

(m.shafiwardak@gmail.com)

❖ خپرندوی- سپوږمۍ راډیو

❖ چاپ کال- ۱۳۹۳المریز غبرګولی

# ډالۍ

هغه نسل ته چې د ځارګرو ادارو په درز غوبل کې راپورته شوی، هر
څه ترې لوټل شوي،

او

راتلونکې د همدوی په هوښیارۍ او اراده پورې تړلې ده

چې:

د پردیو لوبو پېشمرګان کيږي

او که د هغوی پر خلاف درېږي.

(شفیقي)

# د خپرندوی یادښت

ویاړو چې د سي آی اې پټې جګړې اثر پښتو ژباړه، درنو لوستونکیو ته په مخکې بړدو، په دې اثر کې د نړۍ د تر ټولو سترې خطرناکې او پیاوړې څارګرې ادارې د دوو پټو جګړو او عملیاتو تفصیل راغلی دی، لومړی په ویتنام، لاؤس او کمبودیا کې او دوهم د پخواني شوروي د یرغل پر مهال په افغانستان کې.

په دې اثر کې به تاسو د دې څارګرې ادارې د هغو کړو وړو څو تفصیلي داستانونه ولولئ چې د هالیووډ په فلمونو کې یې نن په سینما او تلویزون کې موږ او تاسو ورته ننداره هره ورځ وینو.

د دغه اثر پښتو کول ځکه اړین وو چې سي آی اې به زموږ په ګران هیواد کې خپلو خطرناکو پټو جګړو ته په نوې بڼه دوام ورکوي، زموږ ځوان پاړکی باید د خپل راتلونکي په اړه د دوست او دښمن په پیژندلو کې هوښیار وي، د مبارک حدیث د ارشاد له مخې، له یوه سوري څو ځله ونه چیچل شي. له خدایه غواړو چې دغه اثر درنو لوستونکیو ته ډېر نوي معلومات ورکړي.

درنښت

(د سپوږمۍ راډیو اداره)

### له ویتنام تر افغانستانه؛

## د سي آی اې د پټو جګړو بهیر

**د نړۍ په کچه د امریکا څارګره اداره (سي آی اې) تر ټولو ادارو لویه، خطرناکه او د لوی ځواک لرونکې ده، د امریکا په نوې ستراتیژۍ کې د دې ادارې ارزښت تر پخوا هم زیات شوی دی.**

**د امریکا په نوې پوځي ستراتیژۍ کې پر درې برخو تکیه شوې، د څارګرې ادارې جال، نوې تکنالوجي چې ډرون پکې شامل دي، او کرایي قراردادي پوځیان، لکه بلک واټر او نور.**

**سي آی اې د امریکا د ځواک د ملا تیر حیثیت لري، تېر زیږدیز کال (۲۰۱۳) ز د جون په لومړیو کې د سي آی اې یو مامور اداورډ سنوډن په روسیه کې پناه واخیسته او د سي آی اې په لکونو رازونه یې افشا کړل. په دې کې دا هم افشا شوه چې د وړوکیو هیوادونو څه چې د لویو ملګریو هیوادونو د چارواکیو ټیلفوني مکالمې هم د دوی له خوا اوریدل کیږي، په دې کې د جرمني د صدراعظمې انګلامرکل تیلفوني مکالمې هم وې چې لویې غوغاوې یې راوپارولې، اډوارډ سنوډن امریکا ته د خوږ ګوتې په څېر شو او د ده پر سر یې له روسیې سره اړیکې لانجمنې شوې. هغه وخت په وخت څو ځله ډېر بوږنوونکي معلومات افشا کړل، چې وروسته د امریکا ولسمشر بارک اوباما نړیوالو دوستانو ته دا زیری ورکړ چې ګواکي خپلې څارګرې ادارې به پردې پابندې کړي چې نور به د دوستو هیوادونو د**

چارواکیو تیلفوني مکالمې نه اوري. د ولسمشر اوباما د دې ارادې په وړاندې داسې لوري هم وو چې ویل یې، چې هېڅکله هم باید پر سي آی اې محدودیتونه وضع نشي، ځکه چې دا د امریکا د ګټو پرخلاف دي، اوس که ظاهراً محدودیتونه وضع شي هم عملي اړخ یې ځوک تضمینولای نشي.
دا ددې ادارې د کړنو یو اړخ دی، په ریښتنې مانا نن تقریباً ټوله نړۍ د امریکا تر څارګرو سترګیو لاندې ده، د ۲۰۱۳ز د سپټمبر پر ۸مه واشنګټن پوسټ امریکایي ورځپاڼې د سي آی اې په باب یو لړ معلومات خپاره کړل وې لیکل:
(سي آی اې ۸۵۴۰۰۰ تنه مامورین او جاسوسان لري، له دې جملې څخه ۲۶۵۰۰۰ تنه د امنیتي کمپنیو قراردادیان دی، ریمنډ ډیوس نومی چې په ۲۰۰۹ز کې د پاکستان په لاهور کې د دوو تنو له وژلو وروسته ونیول شو یو له همدغسې قراردادیانو څخه ؤ چې په دې هیواد کې یې پراخه شبکه ایجاد کړې وه.
واشنګټن پوسټ لیکي چې د سي آی اې مامورین په پوځ او دپلوماتانو کې ګومارل کیږي، هغه کمپنۍ چې دوی ورسره اړیکې او معاملې لري شمېر یې تر درې زرو پورې رسیږي، چې په دې کې بلک واټر او زي ورلډ هم شاملې دي.
واشنګټن پوسټ لیکي چې د دفاع وزیر رابرت ګېټس (د راپور د خپرید پر مهال د دفاع وزیر ؤ) ته هم د دوی شمېر او هغه ځایونه چې دوی پکې فعالیت لري معلوم نه دي.

## د سي آی اې پټې جګړې

له دې راپور نه له ورایه ښکاري چې سي آی اې تر پنټاګون لوړه اداره ده او د امریکا حکومت ته د ستراتیژیکو اهدافو ترلاسه کولو په لړ کې دغه اداره لومړی مقام لري.
ریښتیا هم سي آی اې د امریکا د مهمو استخباراتي ادارو څخه یوه ده، د سي آی اې مرکزي دفتر له واشنګټن نه یو څو میله لرې په لانګلي، ورجینیا کې دی او مامورین یې دامریکا له سفارتخانو او نورو ځایونو څخه په ټوله نړۍ کې فعالیتونه کوي.
د امریکا یوازینۍ ازاده اداره ده چې مستقیماً (ډي ان آی) ته راپور ورکوي.
سي آی اې درې پخواني اساسي فعالیتونه لري چې د خارجي دولتونو، ادارو او خلکو په اړه د معلوماتو راټولول، د نورو ادارو راټول شویو معلوماتو په نظر کې نیولو سره د تر لاسه شویو معلوماتو تحلیلول، تر څو امریکایي پالیسي جوړوونکیو ته د ملي امنیت معلومات او استخبارات برابر کړي. او د امریکا د ولسمشر په امر د خپلو مامورینو، د پوځ یا نورو ادارو په مرسته د پټو او جنګي عملیاتو ترسره کول.
او اس اس (د ستراټیژیکو خدماتو مرکز) چې د دوهم نړیوال جنګ پر مهال د دښمن پر خلاف د امریکا د وسله والو قواو د پټو استخباراتي عملیاتو د هماهنګۍ لپاره جوړ شوی ؤ. په ۱۹۴۷ز کې (سي آی اې) د دې ادارې پر ځای جوړه شوه.
د ۲۰۱۳ ز په کلنۍ بودیجه کې سي آی اې پنځه لومړیتوبونه درلودل:
تر ټولو لوړ د تروریزم پر ضد مبارزه

## د سي آی اې پټې جګړې

د لويو بربادوونکيو وسلو(اتمي او نورو) پر جوړولو د بنديزونو لګول، چې شمالي کوريا تر ټولو مشکل هدف دی.

د امريکا مشرانو ته د مهمو بهرنيو پېښو احوال ورکول، چې پاکستان تر ټولو خطرناک هدف ښودل شوی.

د استخباراتو ضد، چې چين، روسيه، ايران، کيوبا او اسرائيل اساسي اهداف ښودل شوي.

په يوه بل راپور کې پاکستان، ايران، افغانستان، چين او کوريا د استخباراتي لومړيو اهدافو په کتار کې ياد شوي دي.

سي آی اې پراخ تشکيلات لري، ساحوي دفترونه يې په لاندې ډول دي:

يو خاص دفتر د عراق لپاره او نور ساحوي د تحليل او ارزونې دفترونه چې لاندې ځايونه تر پوښښ لاندې نيسي:

د منځني ختيځ او شمالي افريقا دفتر

د جنوبي آسيا د تحليل او ارزونې مرکز

د روسيې او اروپايي هيوادونو د تحليل مرکز

د اسيا، لاتين امريکا او افريقا د تحليل مرکز

سي آی اې خپل لومړنی د روزنې او زده کړې مرکز، د تمرين او تعليم دفتر، په ۱۹۵۰ز کې جوړ کړ، د سړې جګړې له ختميدو وروسته د سي آی اې د مسلکي روزنې بوديجه ډېره کمه شوه چې د مامورينو پر پاتې کيدو يې منفي اثر درلود.

د سي آی اې د وخت مشر جورج ټينټ په ۲۰۱۲ کال کې د سي آی اې پوهنتون جوړ کړ، د دغه پوهنتون په کال کې له ۲۰۰ تر ۳۰۰ کورسونه

لري، چې نويو او پخوانيو مامورينو ته روزنه ورکوي، دغه پوهنتون د ملي استخباراتو پوهنتون په همکارۍ کار کوي.

د عملياتي محصلينو افسرانو د وروسته زده کړو لپاره يوه خاصه ساحه په پيريې کمپ، ويليمسبرګ کې له ورجينيا سره نږدې ده. د محصلينو انتخابيدل او د پرمختګ ځارنه د او اس اس د پروسو څخه اخيستل شوې ده، او اضافي د ماموريت روزنه په هروي پواينټ شمالي کيرولينا کې ترسره کيږي.

د امريکا د استخباراتو د عمومي بوديجې معلومات پټ دي، د ۱۹۴۹ مرکزي استخباراتي ايجنسۍ د قانون له مخې د مرکزي استخباراتو ډايرکټر يوازينی مامور دی چې پرته له حسابه هر څومره دولتي پيسې مصرفولی شي.

د سي آی اې لپاره د ۲۰۱۳ز کال بوديجه د ټولې بوديجې ۲۸٪ کيږي او تقريباً ۵۰٪ د ملي امنيت د ادارې له د بوديجې څخه زياته.

سي آی اې له (ان آر او) څخه کارکوونکي نيسي چې اصلاً د سي آی اې او د امريکا هوايي ځواک يو ګډ دفتر دی، چې نظامي جاسوسي سټلايټونه استعمالوي.

د خاصو ډلو خدمات د سي آی اې او ملي امنيت ادارې (ان اس ای) ګډ دفتر دی چې په نړۍ کې د پټو ځارنو کار په سفارتخانو او خطرناکو ساحو کې ترسره کوي.

د سي آی اې کړنلارې او فعاليتونه تقريباً د انګلستان د (اس آی اس يا ام آی ٦)، استراليايي پټو استخباراتو خدمات (آی اس آی اس)، مصري عمومي استخباراتو خدمات، روسي خارجي استخباراتو خدمات (اس وی

آر)، د هند(را)، د پاکستان آی اس آی، د فرانسې (ډي جي اس ای) او اسراییلي موساد سره یو شان دی.

(الترناتیوکانسپریسي) د سي ای آې د تاریخچې په اړه په یوه مطلب کې لیکي:

سي آی اې، ان اس اې او اف بي آی. او نورې دې ته ورته اداري له یو ډول تګلارو څخه پیروي کوي، د دوی دنده د پټو معلوماتو ترلاسه کول او د هغو فلتر کول دي. سي آی اې (سنټرل انټلي جنس سروس) د دوهمې نړیوالې جګړې دOSS (د سټراتیژیکو خدماتو د دفتر) له اطلاعاتي څانګې څخه وزیږید.

پر ۱۹۴۵ز کې چې لا سي آی اې د او اس اس په نامه فعالیت درلود د (کاغذونو نښلولو عملیاتو) په نامه یې یو فعالیت پیل کړ او د نازي المان په سلګونو هغه ساینسپوهان یې چې د توغندیو او نورو خطرناکو وسلو جوړولو مهارت یې درلود په خپل سازمان کې جذب او راټول کړل، سي آی اې په دې پلمه چې دغه ساینسپوهان د شوروي اتحاد لاسته ونه لویږي، پر واتیکان یې فشار راوړ چې دوی ته د امریکا پاسپورټونه ورکړي.

پر ۱۹۴۵ز کې چې دوهمه نړیواله جګړه پایته ورسیده، د فاتحو هیوادونو په تېره امریکا او شوروي اتحاد ترمنځ په المان کې د معلوماتو اونورو ګرانبیه سرچینو د ترلاسه کولو سیالي توده شوه، په دې ګرانبیه سرچینو کې دغه ساینسپوهان هم وو چې د دوی پر مټ نږدې وه جرمني جګړه وګټي، سي آی اې په سلګونو دغه ساینسپوهانو ته په خپله غیږه کې ځای ورکړ.

## د سي آی اې پټې جګړې

د نازي ساینسپوهانو پر هغو وحشیانه جنایاتو پردې واچول شوې چې دوی له زندانیانو سره کړي وو، د ساري په توګه کورت بلومي یو نازي پوه ؤ چې د بندیانو په کمپونو کې یې د طاعون د خپریدو واکسین و ازمویل، هغه د امریکا په پوځ کې وګومارل شو چې د کیمیاوي وسلو د جوړولو په پروژه کار وکړي.

تورنجنرال والتر شریبر د بندیانو په کمپونو کې پر بندیانو د کیمیاوي ازموینښتونو د پروګرام سرطبیب ؤ، چې بندیان به یې ورړي ساتل او ډول ډول عذابونه به یې ورکول. نوموړی په تکزاس کې د هوایي ځواکونو په طبي ښوونځي کې وګومارل شو، همدغسې وارنر ون برون د نازي المان د توغندیو د تحقیقاتو د مرکز رئیس ؤ چې المانیانو هلته (۷۲) ډوله توغندي جوړ کړل، نوموړی د امریکا په پوځ کې جذب شو، چې رهبري کیدونکی توغندي جوړ کړي او وروسته دغه سړی د (ناسا) لومړنی رئیس وټاکل شو.

سي آی اې تر ۷٦۰ تنو زیاتو نازي ساینس پوهانو د جنایاتو دوسیې له منځه یووړې او ټول یې د امریکا په پوځ او استخباراتو کې جذب کړل. دوی ډیری د نازي ګوند او ګشتاپو (د نازي المان د استخباراتو ادارې) غړیتوب درلود.

د سي آی اې د (Operation Paperclip) په ترڅ کې د نازي المان ساینس پوهان ور جذب کړل. له دې وروسته یې Operation ) (Mocckingbrid پیل کړل، د دې عملیاتو په ترڅ کې سي آی اې خبریالان وروزل. د رسنیو بنسټ یې کېښود، چې له دې لارې یې خپل

پروپاګند کاوه، د دې پروګرام لاربښوونکې پروژه د فلیپ ګراهمن لخوا پلې کړای شوه چې وروسته نوموړی د واشنګټن پوسټ خپرونکی شو.
د یو لړ اسنادو له مخې سي آی اې ۲۵ سازمانونه او تر ۴۰۰ تنو زیات خبریالان درلودل چې په هغو کې نوموتې رسنۍ لکه اې بي سي، ان بي سي، سي بي اس، اې پي، رویترز، ټایم، نیوز ویک او نور شامل دي.
سي آی اې د حکومتونو په رانسکورولو کې هم ډېر ستر رول لوبولی دی، د پیټر هارکلیروډ په اثر (د سي آی اې پټې جګړې) کې د جنوبي او مرکزي امریکا، افریقا او آسیا په هیوادونو کې د حکومتونو پر خلاف د بغاوتونو او پاڅونونو په لاربښوونه او پارولو کې چې سي آی اې کوم رول درلود. د هغو هیڅ یادونه نه ده شوې، خو سي آی اې په دې اړه ډېر بوږنوونکی تاریخ لري. یو ساری یې له ٦٠ کلونو وروسته پر ۲۰۱۳ز کې، د سي آی اې د یوه ماموریت افشا کیدل دي چې دوی په ایران کې د ډاکټر مصدق د حکومت په رانسکورولو کې څه ډول براﻻ رول درلود.
په دې سند کې اعتراف شوی چې:
پر ۱۹۵۳ز کې سي آی اې د انګلستان د MI6 سره په ګډه هڅه کې د ډاکټر مصدق قانوني حکومت د یوې کودتا په واسطه رانسکور کړ.
د ډاکټر مصدق پر خلاف د کودتا عملیات د ایجکس د پټو عملیاتو په نامه د (سیا) د بریالیو ماموریتونو په لړ کې راځي.
په ۱۹۵۱ز کال کې د ایران پارلمان او صدراعظم ډاکټر محمد مصدق، د ایران تیل ملي کړل، د بریتانیا د تیلو شرکت انحصار یې له منځه یووړ، د دې په مقابل کې سي آی اې د خلکو د پارولو په یوه پټ پلان کار پیل کړ.

## د سي آی اې پټې جګړې

د ۱۹۵۳ز د اپریل پر ۴مه د سي آی اې رئیس (الین دالس) د ایراني جنرال فضل الله زاهدي بانکي حساب ته یو ملیون ډالره ولیږل، تر څو پر هغه لاره چې د مصدق د حکومت د رانسکوریدو سبب کیدای شي دغه پیسې ولګول شي.

وروسته د کودتا مشرانو د مصدق پر خلاف تبلیغاتي کمپاین پیل کړ، همدغسې یې ګډوډیو ته لمن ووهله، تردې چې دغه ملي حکومت رانسکور کړای شو، پاچا رضا شاه بېرته ایران ته ستون شو، سي آی اې ډېر زر ۵ ملیون ډالره نور هم د نوي حکومت د ثبات لپاره ورکړل، چې بیا وروسته د ایران د تېلو تر نیمایي پر زیاتو تولیداتو امریکا خیټه واچوله، چې د ۱۹۷۹ز د اسلامي انقلاب تر بري پورې یې دوام درلود.

دا چې د سي آی اې اداره جاسوسي ماموریتونه څه ډول ترسره کوي، ښایي د اسامه بن لادن پر خلاف د ۲۰۰۱ز د مې ۲مه د پاکستان په ایبټ آباد کې د شپې ترسره شوي عملیات یې ډېره ښه بېلګه وي چې اوس یې د (سخته ورځ) په نامه د برید کوونکیو له خولې اصلي داستان هم خپور شوی دی، په هر صورت دلته مو خبره د یوه امریکایي لیکوال پر اثر ده. دا د (سي آی اې پټې جګړې) اثر دی چې په پښتو کې لومړی ځل خپرېږي.

د سي آی اې پټې جګړې د (Secrete Wars of CIA) اثر وروستیو دوو فصلونو ژباړه ده، امریکایي ژورنالیست او لیکوال پیټر هارکلیروډ یې لیکوال دی.

په دې اثر کې د ختیځې اروپا او بالټیک له جګړو څخه چې له دوهمې نړیوالې جګړې وروسته په ۱۹۴۹ز کې پیلیږي، بیا د افغانستان تر پټو

## د سي آی اې پټې جګړې

جګړو له (۱۹۷۹ز-۲۰۰۱ز) پورې، په یوولسو فصلونو کې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د هغو جګړو تفصیل دی چې د امریکا د سي آی اې او د انګلستان د څارګرو ادارو لخو د نړۍ په ګوټ ګوټ کې شوې دي او په ملیونونو انسانان پکې وژل شوي دي. که څه هم ټول کتاب د لوستلو ارزښت لري، خو ماته یې زموږ درنو هیوادوالو ته همدغه دوه څپرکي، یو د ویتنام، کمبودیا او لاوس جګړې او بل زموږ په هیواد کې د سي آی اې جګړې ډېر اړین ښکاره شول، چې دادي درنو لوستونکیو ته یې ژباړه مخې ته ږدم. د دغسې اثارو لوستل زموږ ځوان کوول ته ځکه اړین دي چې موږ د تاریخ په اوږدو کې، په تېره په وروستیو څو لسیزو کې بیا بیا د څارګرو ادارو د پټو جګړو په اور کې راښکیل شوي یو، چې له بده مرغه تر اوسه پورې همدغه شوم سیوری زموږ پر ولس غوړیدلی دی، دا اوس چې زموږ ولس هره ورځ وژل کیږي. په نړیواله او ملي کچه د رسنیو د سر ټکي ډېر وختونه زموږ د ولس غمیزې وي، هغه مرګونه وي چې په تعریف یې هیڅوک ونه پوهیدل.

هغه جګړې دي چې فاتح او مفتوح یې معلوم نه دي. یوازې ویر یې د افغانانو کاله ته راغلی دی.

د څارګرو ادارو جګړه همدغسې ده، د ملي او دیني شعارونو تر شا شیطاني ماغزه فعال وي، د ولسونو له احساساتو او جذبو څخه د خپلو موخو تر لاسه کولو کار اخلي.

د کمونیستي لاسپوڅیو او شوروي پوځ پر خلاف (افغان جهاد) زموږ د همدې ژوندي نسل کارنامه ده، خو د پردې تر شا د څارګرو ادارو (سي آی

## د سي آی اې پټې جګړې

اې، آی اس آی او کا جي بي) چارواکیو دغه جګړه داسې کنټرول وساتله چې دوی پکې خپلې موخې ترلاسه کړې، خو هغه ولس چې د خپلې عقیدې، هویت، خپلواکۍ او عزت لپاره یې د لکونو بچیانو قربانۍ ورکړې وې، نامراد پاتې شو.
کور د افغان ړنګ شو، زوی د افغانې مور قرباني شو، وطن پکې د دوی په کنډواله بدل شو، یو نسل له اروایي ناروغیو او یو جهان بدمرغیو سره زموږ ولس لاس او ګریوان شو، د جګړې ګټونکی بریژینسکي ؤ چې خپل حکومت ته یې د خپل سیال شوروي اتحاد د ماتولو لپاره، په افغانستان کې د هغو د راښکیلولو مشوره ورکړه، مشوره ومنل شوه، له افغان جهاد سره ملاتړ وشو شوروي اتحادد همدې جګړې په پایله کې وشړید، سړه جګړه پایته ورسیده او امریکا د نړۍ دیوازیني لوی ځواک په توګه راڅرګند شو. قربانۍ افغان مجاهد ورکړې، د فاتح ویاړ د آی اس آی د مشر جنرال اختر عبدالرحمان شو چې په دې نامه پرې کتاب ولیکل شو، زموږ د ولس قربانۍ لاړې د دوو سترو ځواکونو د سیالۍ په لوبه کې اوبو یووړې!
ولې؟ د دې ډېر ریښتنی ځواب دادی چې په دې جګړه کې څارګرې ادارې فعالې وې، زموږ عام ولس څه چې جهادي زعامت د پردې تر شا پټې توطیې درک نکړای شوې، زه د جهاد د یوه کشر لاروي په توګه د خپل درانه ولس پر قربانیو ویاړم، پر سپېڅلتیا یې باوري یم، ځکه چې که له دې جهاد او برحق مبارزې څخه انکار کوو بیا خو هغه ارزښتونه ټول بې معنا کیږي چې د یوه ولس او هیواد له تاریخ، حماسو، دیني او ملي هویت او مبارزې سره تړلي وي.

## د سي آی اې پټې جګړې

زموږ د ولس جهاد د ۱۳۵۷ز د کينې اړخو ډلو له خونړۍ کودتا سره پيل شو، کودتاچيانو ولس دې ته اړ کړ چې پاڅون وکړي. کودتايي مشرانو د ولس د ديني او ملي ارزښتونو پر خلاف جبهه پرانيسته، ولس يې پر خلاف راپورته شو.

راغله د جهادي ګوندونو او زعامت خبره، چې د داود خان په وروستيو کې پاکستان ته تللي وو، يا وروسته په پاکستان کې جوړ شول، د هغو په باب چې د تاريخ قضاوت هر څه وي وي به، زه يې د کمونستي سيلاب په وړاندې شهامت او مبارزه د ولس يو وياړ بولم، د جهاد په رهبرۍ کې يې رول خپل ارزښت درلود، ولس چې د جهاد پر مهال د دوی څومره درناوی کړی دا هم طبيعي او پر ځای ؤ، خو زموږ جهادي زعامت چې د جهاد د برې په پړاوونو کې کومې تېروتنې کړې له هغو هم انکار ممکن نه دی.

په دې برخه کې عادلانه قضاوت دا نه دی چې د وروستيو ورانيو له مسووليت نه دوی بري وبولو، خو دا هم عادلانه قضاوت نه دی چې د وروستيو بدمرغيو له لامله د دوی د جهادي دوران له شهامتونو څخه انکار وشي.

زه د يوه افغان په توګه پردې باور يم چې جهادي زعامت د پردې تر شا توطيې او پټې لوبې درک نکړای شوې، که د توطيو ژورتوب او د پلي کيدو طرحې او پلانونه يې دقيق وو، او که زموږ د جهادي مشرتابه ناتواني وه، زه پرې څه نشم ويلای، خو دوی په پيل کې درک نکړای شوې او د يوه ولس ډېره ستره قرباني او مبارزه د خپلمنځي جګړو پر پړاو واوښته، بدنامه شوه او د بدمرغيو نوي پړاوونه پيل شول.

## د سي آی اې پټې جګړې

راځم بېرته د دې اثر په اړه څو ټکیو ته:

1 - ماته او ښایي زیاتو لوستونکیو ته به د (ویتنام جګړه) د داسې معما په څېر مطرح وه چې امریکا پکې ماته خوړلې وه، او د ماتې سبب یې دا ؤ چې له ویتنامي ولس سره د پخواني شوروي ملاتړ ؤ.

پر هیواد د پخواني شوروي پوځ د یرغل په باب به دغه خبره ډېره تکراریدله چې امریکا له مجاهدینو سره مرسته کوي چې له شوروي نه د ویتنام د ماتې غچ واخلي. په ویتنام کې څه ډول جګړه شوې، امریکا پکې څه رول درلود او بیا څه پېښ شول، د سي آی اې د پټو جګړو لسم څپرکی پر همدې بحث کوي.

د تاریخي ناولونو د نوماند لیکوال الیاس سیتاپوري یوه خبره زما په زړه ناسته ده، لیکي چې:

انسان چې که پاچا دی، که فقیر، د پېړیو په اوږدو کې هماغه انسان دی، د عقدې، مینې، کسات، عاطفې، مهربانۍ، او... له غریزو او احساساتو څخه پرون هم مالامال ؤ او نن هم.

څارګرې ادارې، د ښکیلاکي لویو ځواکونو د پټ ځواک په توګه له پیله تر ننه همدغسې یو شان وي، چل دوکه، اختلاف، کسات، بې رحمي، او ... د دې ادارو بنسټیز کړه وړه دي، په دومره توپیر چې وسایل او تګلارې به د هر وخت او مکان سره بدلون مومي، سي آی اې چې په لاؤس، کمبودیا او ویتنامونو اوسني واحد ویتنام کې څه کړي دي، په لږ توپیر یې اوس په عراق او افغانستان کې موږ شاهدان یو، ښه ده چې لوستونکي یې پخپله ولولي، چې څه ډول ویتنامي خپل ویتنامي د (دښمن) په نامه وژلی، او څه

ډول امریکایي خاص ځواکونه له ټول وحشت سره یوه ویتنامي ته دوستان او بل ته دښمنان وو. کټ مټ لکه نن چې موږ په افغانستان کې هره ورځ په رسنیو کې همدغه څه اورو. او لکه نن چې نړۍ د عراق په انبار او بغداد کې د کوم وحشت ګواه ده.

2 - د افغانستان په اړه د سي آی اې د پټو جګړو او ماموریت دغه څپرکی د کتاب وروستی څپرکی دی، چې د ۱۹۷۹ز کال د غوایي له کودتا څخه پیلیږي او د ۲۰۰۱ز کال د اکتوبر پر ۷مه پر افغانستان د امریکایي ځواکونو تر یرغل پورې رارسیږي.

په دې موده کې د سي آی اې د ماموریت مهمه برخه له افغان جهاد سره د وسلو او پیسو د مرستو بهیر دی، که څه هم په ځینو برخو کې ځینې خامۍ او کمزورۍ شته. د ساري په توګه ښايي ځینې کسان زیات لوی ښودل شوي وي. ځینې بیا له پامه لویدلي وي، معلومه نه ده چې دا د ناخبرۍ په سبب دي که دا هم د استخباراتي توطیو یوه برخه ده، بیا هم په دې برخه کې ښايي لوستونکي ډېر نوي شیان ولولي.

د دې اثر د لوستلو او ژباړې پر مهال چې ماته کوم ټکي ډېر څرګند ښکاره شول، هغه د پاکستاني چارواکیو او افغاني زعامت ترمنځ له ملي ګټو او هیوادنیو ارزښتونو سره اړوند احساس ؤ. پاکستاني چارواکیو ډېر په مهارت په یوه غشي دوه نښې ویشتلې دي. له سي آی اې سره یې خپله اړیکه ساتلې او افغاني زعامت یې له آی اس آی سره تړلی ساتلی دی، وروسته په دې اثر کې پردې هم خبره شوې چې هم د دوی په مرستو کې خورد او برد شوی او هم پاکستان پکې خپله خوښه او سلیقه پاللې ده.

یو وخت امریکا هڅه وکړه چې نیغ په نیغه له جهادي قوماندانانو سره اړیکې ټینګې کړې، دغسې هڅې به د بریتانیا او نورو لویدیزو هیوادونو هم وې، دوی به له ځینو قوماندانانو سره خاصې اړیکې درلودې، خو هیڅکله یې د جهادي ګوندونو د مشرانو انحصار مات نکړای شو. دغه انحصار تردې پاس د پاکستان یا آی اس آی په لاس کې هم پاتې شو، د راولپنډۍ اوجړي کیمپ چې په ۱۹۸۹ز کې په یوه چاودنه کې والوزول شو، ښایي د همدې لپاره دا کار وشو چې د پاکستان او امریکا ترمنځ چې د مجاهدینو وسلې او پوځې توکي ذخیره شوي، حساب کتاب یې ورک شي چې څومره والوتل او څومره یې پټ ترې بل ځای ته ولیږدول شول؟

یوازې یو خدای په دې رازونو خبر دی.

په هر صورت که له شوروي یرغل سره جهاد زموږ ؤ، که قربانۍ افغانانو ورکولې، که کورونه او کلي زموږ د باروتو په لمبو کې سوځیدل، د نړۍ او مجاهد ترمنځ درېیم لاس ته څه حاجت ؤ؟

که په پیل کې وای هم ولې زموږ جهادي زعامت دغه ستونزې ته پام ونه کړ، چې هر څه وي د دوو ګاونډیو هیوادونو په اړیکو کې بیا هم ځینې سرې کربښې باید وي چې هر لوری یې تر هغو د اوښتلو جرئت ونه کړي.

3 - په دې اثر کې په افغان جهاد کې د ګډون لپاره د یوه منظم پروګرام له مخې له عربي او اسلامي نړۍ څخه، آن له امریکا او اروپا څخه مسلمان ځوانان راوستل شوي دي چې وروسته یې د (افغان مجاهد) په نامه شهرت ګټلی، د دوی سرلاری اسامه بن لادن او شهید عبدالله عزام وو چې په ۱۹۹۰ز کې په پېښور کې له یوه زوی سره یو ځای په یوه بمي

## د سي آی اې پټې جګړې

چاودنه کې شهید کړای شو، دا په کې ډېر څرګند ښکاري چې د پرون مجاهد د نن ترهګر، هماغه څوک دي چې لویدیزو څارګرو ادارو راټول کړل، د پاکستان په مرسته د ډیورنډ کرښې په اوږدو کې مرکزونه ورته جوړ شول، خو د پرون او نن ترمنځ لوبه په داسې مهارت واوښته، چې د ارزښتونو علمبرداران او ژغورونکي، مجاهدین پر ترهګرو، ورانکارو او یوه خطرناک ځواک بدل شول، دا چې د ۲۰۱۴ ز نه وروسته په دې سیمه کې لوبه بیا په کومه بڼه بدلیږي لا معلومه نه ده، دا چې له ۲۰۰۱ز تر ۲۰۱۴ز پورې سي آی اې دلته څه ډول لوبې کړې، بشپړ داستان به یې وروسته خامخا افشا کیږي. باور مو دی چې د تېرو دوولس نیمو کلونو پټو جګړو داستان تردې اوسني ډېر بوږنوونکی دی چې پیټر هارکلیروډ یې بیانوي، په دې وروستي داستان کې له عزیزآباده تر پنجوایي، چارچینو، ننګرهار او.... د ړندو بمباریو، پر سپیانو د داړلو، شپې چاپو، او وحشتونو هغه کیسې ټولې شاملې دي چې هره پېښه یې را لوڅیږي په نړیواله کچه غوغا ورسره راپورته شي. دغه ناویلی داستان لا پاته دی.

مخکې مې دوو ټکیو ته اشاره وکړه، یو دا چې د سي آی اې مشر یوازېنی څوک دی چې بې حساب کتابه پسې لګولی شي، دوهم په ۱۹۵۳ز کال د ایران د صدراعظم ډاکټر مصدق د حکومت پر خلاف د کودتا پروګرام چې د سي آی اې لخوا عملي شو.

په افغانستان کې په بېلابېلو نومونو او پلمو د ډالرو ولګول. آن تر دې چې پر ۲۰۰۹ز کې د ولسمشر کرزي او امریکا اړیکې خړې پړې شوې، سي آی اې دا ورپسې خپاره کړل چې ارګ ته یې په کڅوړو کې ډالر ورکول، کرزي

پرې اعتراف وکړ، وروسته دا هم افشا شوه چې په ارګ کې بېلابېلو کسانو ته میاشتني معاشونه ورکړای شوي، په همدې تمه او موخه چې د حکومت رازونه ترې واخلي باور مو دی چې د دې تفصیل یوه ورځ ټول افشا شي. په رسنیو کې یوه اصطلاح ده چې معلومات ځواکمني ده، که عادي معلومات ځواکمني ده بیا خو ستراتیژیک معلومات داسې پریکنده ځواک دی چې هره اداره یې لري هغه به پر نورو ادارو او آن دولتونو برلاسي لري.

کله چې د ۱۳۵۷لمریز له کودتا یونیم کال وروسته، پر هیواد روسي پوځ یرغل راوړ، له دواړو لوریو د خارګرو ادارو لاسونه هیواد ته راننوتل، په پایله کې موږ ته د (محرم) او راز په نامه څه پاتې نه شول چې دا زموږ د وطن له لویو زیانونو څخه یو ؤ. د سي آی اې پر مټ نن امریکا پر نړۍ واکمني کوي، د دې ادارې په زور نن د امریکا د ستراتیژۍ جوړوونکیو ادارو پر میزونو د ټولې نړۍ د مهمو رازونو دوسیې سپړلې پرتې دي. ویکي لیکس څومره اسناد افشا کړل؟ له سي آی اې څخه ګرځیدلي ادوارد سنودن له څومره لویو رازونو پردې پورته کړې، دا چې نن د ټکنالوجۍ او خارګرو ادارو پرمټ نه د لویدیزو هیوادونو د چارواکیو پټې خبرې راز پاتې دي او نه زموږ د هیوادونو، پایله یې همدغه ده چې د نړۍ په کچه داسې څوک د یوه لاس له ګوتو نه زیاتیږي چې له امریکا سره سترګې پر سترګو جنګولای شي.

یوازې هماغه څوک چې لږ تر لږه خپلو ولسونو ته صادق وي، که نورې کمزوۍ لري، لري به یې.

د ۲۰۱۴ز د مې پر ۲۵مه د هیواد په کابینه کې، پردې توند بحثونه وشول چې امریکایان او انګریزان د هغو وسایلو په واسطه چې دوی ظاهراً د

مخدره موادو د قاچاق د مخنیوي لپاره دوی زموږ په هیواد کې فعال کړي دي د جګپوړیو چارواکیو مکالمې اوري، له دغه راز څخه هم لومړی ویکي لیکس پرده پورته کړه، ولسمشر او کابینې د دې تاسیساتو د سمدستي بندولو پرېکړه وکړه.

د څارګرو ادارو دنده همدغه ده چې د هیوادونو او چارواکیو د ضعف او ځواک ټکي په دقیق ډول معلوم کړي او بیا کار ترې واخلي.

ما له پخواني شوروي سره زموږ د ولس د برمیال جهاد پر مهال، یوه ورځ په لاهور کې یوه ډایجسټ وپیرله، په هغو کې د روسي ډوله میګ ۲۱ جیټ الوتکې د تښتولو کیسه وه چې د یوه عراقي پیلوټ لخوا له عراقه وتښتول شوه او په تل ابیب کې کښېنول شوه.

کیسه د عراقي پیلوټ په اړه وه چې یو وطندوست ځوان ؤ، په کوم اروپایي هیواد کې، سي آی اې د یوې ښایسته نجلۍ په ښه دام ورته وغوړاوه، د ده او نجلۍ آشنایي په توده مینه بدله شي، تردې چې پیلوټ دې ته چمتو کوي چې خپله میګ الوتکه وتښتوي او په تل ابیب کې یې کښېنوي.

پیسه، جایداد او مقامونه ددې ادارو وسایل دي، همدغسې د تبلیغاتو په زور د اړتیا وړ کاذب شخصیتونه جوړول او صادق شخصیتونه بدنامول. د دوی هغه ډېرې معمول تګلارې دي.

تاسو وګورئ د عربي نړۍ، افریقا یې قارې او په آسیا کې نورو ګڼو شمېره دولتي مشرانو د لویدیز ډول ته څنې غورځولې، خو چې له کاره ولویدل د خپلو ولسونو رحم او کرم ته یې پرېښودل، دوی هماغه څوک وو چې د همدې لویو شبکو په زور او ملاتړ د خپلو ولسونو پر اوږو سپاره وو، له خپلو دیني

## د سي آی اې پټې جګړې

**او ملي ارزښتونو یې مخ اړولی ؤ، خو چې نور نه چلیدل ولسونو ته په ډاګ پاتې شول، د سي آی اې په شمول د لویو خارګرو ادارو په منځ کې تر ټولو لوی اصل د ماکیاولي د سپارښتنو پر بنسټ د خپل حاکمیت او خپلو ارزښتونو برلاسي ده، نړیوال اصول، دیني ارزښتونه، انساني او بشري اخلاق، رحم، عاطفه، میړانه، ژمنه، تعهد او نور دغسې شیان دوی نه پیژني او نه پرې باوري دي.**

**د دوست او دښمن تعریف، د ارزښتونو او اصولو تعریف هېڅکله ثابت نه دی، دا ټول د دوی د حاکمیت له زاویې تعریفیږي، په دې اثر کې به تاسو ولولی چې د سي آی اې په پیسو څه ډول د نړۍ له ګوټ ګوټ نه اسلامپال ځوانان د افغان جهاد لپاره راټول کړای شول، او څه ډول اوس هغوی د مجاهد پر ځای د ترهګر په نامه له انساني ټولنې څخه تجرید پاتې شول، له دیوال سره ولګول شول او دې ته اړ کړای شول چې په ریښتینې معنا هغوی انساني ټولنې ته سرخوږی شي.**

**د ټولنو په منځ کې د ارزښتونو او هغو احساساتو پیکه کول چې د یوې ټولنې د یووالي او ځواکمنۍ تومنه بلل کیږي، د دې ادارو د کار له اصلي برخو څخه دي.**

**د معنویتونو بې ارزښته بلل، او د هغو پالل د نوي ژوندانه له اصولو سره په ټکر کې او دوروسته پاتې والي لامل تبلیغول، ټول هغه څه دي چې موږ یې متاسفانه همدا نن تجربه کوو، که دې ستونزو ته جدي پام ونشي، ښایي سبا ته موږ د نن د غفلتونو د جبران فرصت او وړتیا ونه لرو.**

## د سي آی اې پټې جګړې

زه نور خپلې خبرې رالنډوم، لوستونکيو ته بلنه ورکوم چې له ويتنام تر افغانستانه د نړۍ تر ټولو خطرناکې څارګرې ادارې د پټو جګړو څو ترخې کيسې ولولې.

د ګران محمد شفيع وردګ ښه غواړم چې د دې اثر په کمپوز او ډيزاين کې يې زيار وګاله، د درانه حميد ناصري څخه يو ځل بيا هم د زړه له کومې مننه چې دغه اثر يې په همت چاپ او لوستونکيو ته رسيږي. د خپلو ټولو هغو درنو لوستونکيو مينه او هڅونه، زما د دې چار ددوام شيمه ده چې پر ټيلفون، يا مخامخ يې راباندې لوروي، د ټولو ښه غواړم.

په مينه او درناوي

محمد زبير شفيقي

۱۳۹۳ل د غوايي ۲۲مه- کابل پروان مېنه

د ويسا ورځپاڼې دفتر

# (۱)

# د سي آی اې پټې جګړې

## ویتنام، کمبودیا او لاؤس

## له۱۹۵۴تر۱۹۷۱ز پورې

پر ۱۹۵۴ز کې په هندوچین کې د لومړۍ جګړې له پایته رسیدو سره ویتنام په دوو برخو وویشل شو. شمالي ویتنام کمونیستي برخه د هوچي من تر مشرتابه لاندې د ویتنام د خلکو د دیموکراتیک جمهوریت په نامه جوړ شو او په جنوب کې د فرانسې د لاسپوڅي صدراعظم پخواني پاچا باوډایی حکومت ؤ.

د ۱۷مې متوازې کرښې سره جوخت ۱۴میله سوروره غیر پوځي ساحه رامنځته شوه چې د کاناډا، پولنډ او هند له استازو جوړ یو نړیوال د کنترول کمیسیون (آی سي سي) ته دا مسوولیت وسپارل شو چې دا باوري کړي چې دواړه لوري به د جینوا پر تړون عمل کوي.

له شمال لوري څخه ۹ لکه کډوال چې زیاتره یې د کمونیستانو مخالف توندلاري کاتولیکان وو، جنوبي ویتنام ته راغلل او دلته میشت شول، همدغسې یو لک تنه پوځیان له جنوب څخه شمالي ویتنام ته لاړل چې

## د سي آی اې پټې جګړې

هلته د ویتنام د نوي جوړ شوي ملي پوځ په ۳۲۴مه او ۳۲۵مه فرقه کې جذب شول. په دې موده کې لس زره تنه کمونیستان په جنوب کې د (ریزرف) ځواک په توګه اوسیدل چې د اړتیا پر وخت دوی راپورته کیدل. همدغسې د شپږ زره تنو چریکانو لپاره وسله هم په جنوب کې ځای پر ځای شوې وه.

د همدې کال د اکتوبر پر۲۴مه د جنوبي ویتنام چارواکیو ته د امریکا ولسمشر آیزن هاور دا خبر ورکړ چې دوی د فرانسې له منځګړتوب پرته غواړي نیغ په نیغه ورسره پوځي مرستې وکړي.

شپږ میاشتې وروسته د ۱۹۵۵ز د می پر لسمه جنوبي ویتنام له امریکا څخه رسماً پوځي مرسته وغوښتله او د جولای پر ۲۰مه یې د جینوا کنوانسیون له مخې د ویتنام په سر تاسري انتخاباتو کې له ګډون څخه په دې دلیل ډډه وکړه چې په شمالي کمونیستي ویتنام کې د انتخاباتو کیدل ممکن نه دي.

د اکتوبر پر۲۳مه په ملي کچه ټولپوښتنه(ریفرانډم) ترسره شو، چې په پایله کې د باوډایی حکومت ړنګ شو او د نګوډنه ډایم په مشرۍ د ویتنام جمهوریت جوړ شو، د سپتمبر پر۲۵مه کمبودیا هم د خپلواکۍ اعلان وکړ.

د ۱۹۵٦ز د اپریل پر ۲۸ مه د امریکا پوځي مرستندوی مشورتي ګروپ (ایم اې جي) د برید جنرال اورډنیل په قومانده د ویتنام د خلکو د جمهوریت د پوځي روزنې مسوولیت واخیست او فرانسوي پوځ له دې هیواده په وتلو پیل وکړ، د ۱۹۵۷ز په جون کې د فرانسوي پوځ وروستۍ

## د سي آی اې پټې جګړې

ډله هم له هیواده ووتله او په سپټمبر کې په جنوبي ویتنام کې لومړني انتخابات ترسره شول چې(ډایم) د ولسمشر په توګه وټاکل شو.
د جینوا کنوانسیون له مخې د امریکا د مشورتي مرستندوی ګروپ(ایم اې اې جي) شمېر ۳۴۲تنو ته محدود شوی ؤ، خو د فرانسوي پوځ له وتلو وروسته چې لوژیستکي ستونزې راپیدا شوې د دې شمېر یې تر پنځو سوو تنو پورې زیات کړ، چې اوس یې څه نورې دندې هم پر اوږو ور ولویدې او پردې یې د (لنډ مهاله پوځي ارزولو ماموریت) نوم کېښود.
امریکا له دې زیاتوالي څخه د جاسوسي عملې د زیاتولو لپاره کار واخیست، او په دې کې یې یو د سایګون پوځي ماموریت(اس ایم ایم) په نامه د سي آی اې یونټ هم واستاوه. دغه یونټ د امریکا په سفارت کې اوسیده، او قومانده یې د امریکا د هوایي ځواک د ډګروال اډوارډ لالنس ډیل سره وه. دغه یونټ د ۱۹۵۴ز په می کې د ډین بین پو له زوال سمدستي وروسته د ویتنام پر خلاف په نیم پوځي او رواني جنګ کې د مرستې لپاره راڅرګند شوی ؤ.
خو د فرانسویانو له وتلو څخه وړاندې دا په شمال کې د پټو عملیاتو لپاره د ټیمونو په جوړولو بوخت ؤ، په دې عملیاتو کې تخریب کاري، وژنې او نور تر څمکه لاندې کارونه شامل وو.
دغه ګروپونه به د سي آی اې د خپلو هغو الوتکو د ملکي هوایي ترانسپورټ(سي اې ټي) په مرسته شمالي ویتنام ته ننه ویستل کیدل، چې هغوی ته له شمال نه جنوب ته د کډوالو د وړلو دنده سپارل شوې وه، د

## د سي آی اې پټې جګړې

کډوالو د وړو راوړو د پېرو تر پرده لاندې دوی شمالي ویتنام ته وسلې، باروت او نور جنګي وسایل وړل.

په هنویي کې دغه وسلې او باروت د (اس ایم ایم) ګروپ ترلاسه کول چې د مشورتي ګروپ د امنیت دنده یې درلوده او د هغو قوماندان جګړن باب ؤ.

دغه جګړن په دوهمه نړیواله جګړه کې د امریکا په پوځ کې دنده سرته رسولې وه، او دلته یې ظاهراً د کډوالو د ایستلو په چارو کې د اړیکو دنده درلوده، خو د ده اصلي ماموریت د (بي ای ایم اېچ) په نامه د یوه پټ سازمان جوړول وو چې د شمالي ویتنام پر سرکونو او د اورګاډي پر کرښو بریدونه وکړي.

یو بل ټیم د (ایچ اې کیو) په نامه د جګړن فریډایلن په قومانده د شمالي ویتنام په جنوب کې د مقاومت د غورځنګ پر جوړولو ګومارل شوی ؤ.

د ۱۹۵٦ز په فبروری کې د امریکا مرستندوی عملیاتي ګروپ د جنوبي ویتنام په پوځ کې د غلچکي بریدونو لومړی یونټ د (لومړنی څارونکی ګروپ) په نامه جوړ کړ چې د غړیو شمیر یې (۳۰۰) کسان وو. دوی به په ۱۵کسیزو ګروپونو کې شمالي ویتنام ته د پوځي عملیاتو لپاره ننوتل، د غیر پوځي سیمې له لارې د شمالي ویتنام له لوري پر جنوبي ویتنام د برید پر مهال په د دې ګروپونو دنده دا وه چې له شانه د اکمالاتو لارې غوڅې کړي او مخالف ګروپونه وروزي.

دغه مهال په لاوس کې چې د جنیوا د کنوانسیون له پریکړو نه د سرغړونې له امله اوه زره ویتنامي پوځیان پټ وو، د کمونیست رژیم له سیاسي

## د سي آی اې پټې جګړې

ګډوډیو څخه یې غوښتل ګټه اوچته کړي، او د واک ترلاسه کولو په هڅو بوخت وو. پر ۱۹۵۷ز کې د پاتهټ لاو کمونیستي چریکانو او د شمالي ویتنام پوځیانو د (ټچي پون) مهم ښار ونیو چې، د جنوبي ویتنام او میکانګ د لارو د یو ځای کیدو په مرکز کې پروت دی. د دې ښار له نیولو سره کمونیستانو پر ټوله مرکزي سیمه خپل کنترول ټینګ کړ او په ټول سرحد کې یې د لاسوهنو توان وموند.

د جینوا تړون له مخې امریکا نشو کولای چې لاوس ته د خپلو مشورتي مرستندویو پوځیانو زیات شمېر راولي، ځکه خو په ۱۹۵۸ز کې سي آی اې د (ایولیوایشن اداري) بنسټ کېښود، چې اصلاً تردې نامه لاندې دوی د پاتهټ او شمالي ویتنام د پوځ پر خلاف پټ عملیات کول، د دوی لومړی دنده دا هم وه چې له (مونټاګنارډ قبایلو) سره ښې اړیکې ټینګې کړي چې د لاوس په سرحد کې په غرنیو سیمو کې میشت دي. په پیل کې دغه قبیلې بدګومانه وې، د هغوی دا په یاد وو چې فرانسویانو څه ډول دوی پرېښودل چې بیا کمونیستانو ورسره څومره بد چلن وکړ، دلته په ځانګړي ډول د همونګ قبیلو او مشر یې وانګ پاو له سي آی اې نه ضمانت وغوښت چې د دوی پای به هغسې نه وي. امریکا سمدستي دا ضمانت ورکړ.

د ۱۹۵۹ز په جولای کې د امریکا د خاصو ځواکونو ۱۰۷تنه د ډګروال آرتر سایمنز په مشرۍ د (پي اې او) تر پوښ لاندې لاوس ته ورسیدل، چې د لاوس ملي پوځ ته د سي آی اې د (وایټ سټار) تر قومانده لاندې د چریکې جګړې روزنه ورکړي. د دوی اصلي ماموریت وروسته بدل شو او په راتلونکیو ۱۲ میاشتو کې یې د وایټ سټار تر سیوري لاندې د همونګ

قبايلو ۹ زره تنه جنګيالي وروزل او د پاتهټ او شمالي ويتنام پر خلاف يې په جګړو وګومارل، چې وروسته بيا د سي آی اې د دغه همونګ قبيلو د جنګياليو شمېر تر ۴۰ زره تنو زيات شو، د دوی وسلې او اکمالات د امريکا د هوايي چلن الوتکو لخوا برابريدل، چې اوس يې د (سي آی اې) په نامه نوی نوم غوره کړی ۀ. د ۱۹۵۹-٦۰ مو کلونو په اوږدو کې په جنوبي ويتنام کې د ويټ من غړي ډېر ګړندي راپورته شول. په ۱۹۵۹ز کې، کمونيستانو يو پټ ګروپ ۵۵۹ لمبر د مرستو رسولو ګروپ، د جنرال ودبام په مشرۍ جنوبي ويتنام ته د لاوس له لارې واستاوه چې هلته د يوه لوی بريد تياری ونيسي.

د شمالي ويتنام د څارګرې ادارې (ټرن ساټ) په مرسته دې ګروپ زيات شمېر کمونيستان وروزل او د راتلونکيو پينځو کلونو په بهير کې نږدې ۴۴زره کمونيستان له غير پوځي سيمې څخه له هغو لارو جنوبي ويتنام ته تېر شول چې وروسته د (هو چي من لارې) په نامه مشهورې شوې.

پردې پراخو لاسوهنو سربېره(ټرن ساټ) په جنوبي ويتنام کې زيات دولتي چارواکي ووژل او د ۱۹٦۰ په نومبر کې د پوځ درېيم هوايي کنډک د ولسمشر (ډايم) د حکومت رانسکورولو هڅه هم وکړه چې ناکامه شوه.

د ۱۹٦۰ز په پيل کې ډګر جنرال ادوارد لانس ډېل بيا راښکاره شو چې د جنوبي ويتنام له خرابې وضعې څخه نهيلی شو او د امريکا د مرستو د زياتيدو پلان يې وړاندې کړ. ولسمشر جان ايف کينيډي دغه وړانديز ومانه، او د جنوبي ويتنام د پوځ د ځواکمنولو پلانونه يې منظور کړل. د امريکا د خاصو ځواکونو (سپيشل فورس) ۴۰۰ تنه اضافي کسان يې ويتنام

## د سي آی اې پټې جګړې

ته واستول چې، د کمونیستانو له اغیز نه په آزادو شویو سیمو کې ثبات ټینګ کړي او له ځایي خلکو سره پخپله د خپل امنیت ټینګو لپاره د (ملکي دفاع ډلو) په جوړولو کې مرسته وکړي. د ۱۹۹۱ز په سپتمبر کې د سپېشل فورس پینځم (هوایي کنډک) هم ددې کار لپاره فعال کړای شو.

په دې معامله کې د کینیډي د احساساتو او جذبو په پایله کې په ویتنام کې د سي آی اې پټ ماموریتونه هم زیات شول چې، په سایګون کې د دوی د مرکز د مشر ویلیم کولبي په مشرتابه ترسره کیدل. هغه اجازه درلوده چې خاص ځواکونه او د امریکا سمندري ځواک(سیل) چې په ځمکه، اوبو او فضا کې فعالیت کولای شي، په پټو عملیاتو کې د شاملوونکیو ویتنامیانو په روزلو او مشورو کې کارولای شي.

د سي آی اې دې مامورینو د نهاترانګ له څنډو څخه د مشترکې مطالعاتي ساحې (سي آی اس) تر ظاهري نامه لاندې د جنوبي ویتنام د پوځ لومړني هغه ګروپونه وروزل چې له اوږده واټن څخه دننه ننوزي او عملیات سرته ورسوي. پر ۱۹٦۱ او ٦۲مو کلونو کې دې ګروپ په لاوس کې ۴۱ ځله عملیات وکړل، او د شمالي ویتنام د مداخله کوونکیو ګروپونو د لارو څارنه یې وکړه، خو د ډېر احتیاط له امله هغوی ډېر مهم جاسوسي معلومات ترلاسه نکړای شول. د (سېل) کوماندویانو د (سي کوماندویانو) په نامه یو ګروپ هم جوړ کړ، چې موخه یې پر سواحلو چاپې غورځول وو، خو له زیاتو چاپو وروسته هغوی د شمالي ویتنام د وسله والو ګړندیو کښتیو سره مخ شول چې له هغو وروسته سي آی اې دوی ته د عادي کیښتیو پر ځای برید

## د سي آی اې پټې جګړې

کوونکې جنګي کېنښتې چمتو کړې، چې ډېر زر هغوی د ویتنام پر ټوپک لرونکیو کېنښتیو بر لاسي شول.

سي آی اې د پټو عملیاتو لپاره، یو پټ هوایي ځواک هم جوړ کړ، دا یې د ویتنامي هوایي ځواک له یوه کنډک څخه جوړ کړ چې قومانده یې د ډګروال نګویان کاوکي سره وه، دوی ته هغو قومپالو چینایانو روزنه ورکړه، چې سي آی اې په چین کې د پټو عملیاتو لپاره روزلي وو، په شمالي ویتنام او لاوس کې د هوایي عملیاتو د پلانولو مسوولیت د امریکا د هوایي ځواک د ۱۰۴۵ لمبر عملیاتي د ارزونې ټرېننګ ګروپ(وای ټي جي) ته سپارل شوی ؤ، چې په ټولې منځنۍ او جنوب ختیځې آسیا کې د سي آی اې په پټو عملیاتو کې مرسته رسوونکی یونټ ؤ.

سره له دې چې دغه یونټ په تبت کې د (بارنم) په عملیاتو کې بوخت ؤ، له دې سره یې په لاوس او شمالي ویتنام کې هم د سي آی اې په عملیاتو کې هوایي مرسته ور رسوله. دلته هم د عملیاتو قومانده جګړن لارنس روپکا ته ورکړای شوه چې د لاوس له لارې یې شمالي ویتنام ته الوتنې کولې.

په شمالي ویتنام کې پلي کړای شوي لومړني څلور کسیز ټیم ته، له سایګون څخه ۲۵میله شمال ختیځ لوري ته، د لانګ تنهه په کمپ کې روزنه ورکړای شوه. د اټلس په شفري نامه دغه ټیم په مارچ کې ټایلند ته ورسول شو، له هغه ځایه د هلیکوپټر په واسطه د لاوس دننه سرحد ته نږدې کوز کړای شو. خو کله چې دغه ټیم پلی شو نو د شمالي ویتنام پوځ د هلیکوپټرو د کوزیدو سیمه پخوا کلابنده کړې وه، هغوی د دې ټیم دوه

تنه ووژل او دوه نور يې ژوندي ونيول. درې مياشتې وروسته هغه دوه تنه په هنويي کې محاکمه شول. د می په مياشت کې يو بل ټيم د شمالي ويتنام په لويديز کې په سون لا ولايت کې ښکته کړای شو. د کاسټر په شفري نامه په دې ټيم کې د ويتنامي کوماندو پوځ څلور تنه شامل وو چې د همدې ولايت اوسيدونکي وو، څو ورځې وروسته سي آی اې ته دا معلومات وشو چې د دې ټيم غړي نيول شوي دي، اوس د شمالي ويتنام د پوځيانو تر فشار لاندې مخابروي پيغامونه استوي. دغه مخابروي اړيکې د ۱۹٦۳ز تر جولای پورې روانې وې او بيا غوڅې شوې. وروسته بيا دوه نور ټيمونه د (ايکو) او (ډيډو) په نومونو هم پلي کړای شول، ايکو ګروپ د جون پر ۲مه د ساحلي ولايت کورنګ مو په لام تراچ ولسوالۍ کې کوز کړای شو. خو له کوزيدو سره يې درې واړه غړي ونيول شول، د دوی له مخابرو څخه د شمالي ويتنام چارواکيو د دوکه کولو په عملياتو کې کار واخيست. سي آی اې له ايکو سره د ۱۹٦۲ز تر اګسټ پورې مخابروي اړيکې وساتلې.

ډيډو هم د ۱۹٦۱ز په جون کې ښکته کړای شو، د هغوی څلور واړه غړي په لابي چاو ولايت کې تر کوزيدو لږ وروسته هغه مهال ونيول شول چې يوه غړي يې له خپل کور سره اړيکې ونيوې. د شمالي ويتنام چارواکيو دغه ټيم هم د دوکه کولو لپاره وکاراوه او د دوی په واسطه يې مخابروي پيغامونه خپرول، تردې چې سي آی اې دغه اړيکې غوڅې کړې.

په ۱۹٦۲ز کې نور ټيمونه هم پلي کړای شول، لومړی ټيم د تارزن په نامه کوز کړای شو چې له سي آی اې سره يې د ۱۹٦۳ز تر جون پورې مخابروي

اړيکې وې، د فبروري پر ۲۰مه يوروپا نومی ټيم له لاوس سره په بريد کې دننه کوز کړای شو چې دوه ورځې وروسته ونيول شو. د اپريل پر ١٦مه د (رېمس) څلور کسيز ګروپ د ډين بين پهيو ته نږدې سيمه کې پلی کړای شو. د اګسټ پر ۱۲مه په دې ګروپ کې دوه تنه نور ور اضافه شول.

د ۱۹٦۳ز تر پايه يې ټول ټال ۲٦ګروپونه او يو ځانګړی ايجنټ(جاسوس) کوز کړل. د شمالي ويتنام چارواکيو نږدې ټول دغه ګروپونه ونيول، چې له هغوی څخه يې درې ګروپونه په چل ول د مخابروي پيغامونو لپاره وګومارل خو سي ای اې پرې خبره وه، سي آی اې پخپله د دوکې په دود دغه اړيکې ساتلې وې.

۱۸ مياشتې مخکې په اپريل کې د کينيډي حکومت له يوې بربادۍ سره مخ شو، کله چې د سي آی اې په ملاتړ د کاسترو جلاوطنه مخالفينو پر (بې آف پګز) ناکام بريد وکړ، د دې پلان د ناکامۍ د پلټنو لپاره د جنرال ميکس وېل ټيلر په مشرۍ يو کميسيون جوړ شو، دوی دا وويل چې دغه عمليات دومره پراخ او تيت شول چې د سي آی اې له کنتروله ووتل، دې کميسيون سپارښتنه وکړه چې د سي آی اې تر اداره لاندې په نورو روانو پلانونو بايد له سره غوره وشي. هغوی پردې سربېره دا سپارښتنه وکړه چې کوم عمليات د استخباراتي ادارو له کنتروله وتلي وي، د امريکا پوځ ته دې وسپارل شي، د څېړونکي کميسيون د رپورټ په پايله کې، سي آی اې دې ته چمتو شوه چې د جنوبي ويتنام عمليات په ۱۸ مياشتو کې دننه پوځ ته وسپاري، دې کار ته يې چې کومه طريقه غوره کړه هغو ته يې (سوچ بيک) نوم ورکړ چې د ۱۹٦۳ز تر پايه بايد بشپړ شوی وای. خو دوو مهمو پېښو

دغه پروګرام وځنډاوه، يو د جنوبي ويتنام د ولسمشر نګوډنهه ډايم د تخت رانسکوريدل او بل له دې څخه درې اونۍ وروسته دامريکا د ولسمشر کينيډي وژل کيدل وو.

په جنوب کې د کمونيستانو د پر لپسې لاسوهنې او مداخلې د زياتوالي له امله امريکا په شمالي ويتنام کې د پټو عملياتو ګړندي کولو پريکړه وکړه. په دسمبر کې سي آی اې او دفاع وزارت د(۳۴ اې عملياتي پلان) په نامه يو پلان چمتو کړ چې د منظورۍ لپاره يې دلوی درستيز مرستيال ته وړاندې کړ. د ۱۹٦۳ز د دسمبر پر ۲۱مه د امريکا د دفاع وزير رابرت مکنامارا ولسمشر ليندډن جانسن له دې پلان څخه خبر کړ. د ۱۹٦۴ز د جنوري پر ۱٦مه د دفاع وزارت لارښوونه وکړه چې د دې پلان مسووليت په ويتنام کې د امريکا عملياتي مرستندوی پوځ ته وسپارل شي چې قومانده يې د جنرال پال هارکنز پر غاړه وه. درې ورځې وروسته د دفاع وزارت او سي آی اې په منظورۍ پر دې پلان عملي کار پيل شو.

*　　　　*　　　　*　　　　*

د ۱۹٦۴ز د جنوري پر ۲۴مه په ويتنام کې د امريکا مرستندوی مشورتي ګروپ په ويتنام کې د سي آی اې د پټو عملياتو د اداره کولو لپاره يو ځانګړی يونټ(خاص عملياتي ګروپ) جوړ کړ چې د امريکا د درې واړو قواوو غړي پکې شامل وو، څو مياشتې وروسته د دې ګروپ نوم بدل کړای شو،(مطالعاتي او څارونکی ګروپ) نوم پرې کېښودل شو، عملاً دغه ګروپ په ويتنام کې د امريکا د عملياتي مرستندوی ځواک تر قوماندې لاندې نه ؤ او په واشنګټن کې د لوی درستيز د مرستيال له لوري نيغ اداره کيدو، د

## د سي آی اې پټې جګړې

عملیاتي مشورتي ګروپ یوازې پینځو کسانو په سایګون کې د دوی له فعالیتونو او عملیاتو څخه معلومات درلودل، یعنې په جنوبي ویتنام کې د امریکایي ځواکونو قوماندان، د هغه د دفتر رئیس، د هغه د استخباراتو رئیس، د امریکا د هوایي ځواکونو د اووم هوایي ځواک قوماندان او د امریکا د پوځ عمومي قوماندان.
عملیاتي مرستندوی ځواک، د دې نوي خاص ګروپ مشر ډګروال کلائیډ آر رسل وټاکه، د سایګون په شمال ختیځ کې د لانګ تهنه په کمپ کې د سي آی اې د مرکز له سنبالولو وروسته هغه خپل یونټ په څلورو برخو وویشه، لومړی د هوایي کوماندو عملیاتي ګروپ ۇ چې مشر یې په پیل کې ډګرمن ادوارد پارټین وټاکه.
د امریکایي مشورتي عملیاتي ګروپ د هوایي مرستو پلان، د هغه د هوایي مطالعاتو څانګې چمتو کړی ۇ، د هوایي عملیاتو شفري نوم(مډرف) ۇ او د هوایي مطالعاتو ګروپ مسوولیت ۇ چې الوتکې ورته چمتو کړي، چې تر قومانده لاندې یې د هوایي خاصو عملیاتو شلم کنډک، د ۲۱۹م کنډک هلیکوپترو ټولی، او د لومړي لمبر هوایي چلن الوتکو یونټ ۇ چې ترانسپورتي هلیکوپترې، ګن شپ هلیکوپترې، کنګ بي ډوله هلیکوپترې او C123 ډوله الوتکې پکې شاملې وې، د لومړي لمبر یونټ الوتکې چینایي قومپالو پیلوټانو الوزولې، چې د چین د ولسي جمهوریت (تایوان) په ۳۴م کنډک کې یې دنده ترسره کړې وه، دا ډېر پټ یونټ ۇ چې د چین په مرکزي ځمکه کې دننه یې د سي آی اې له لوري عملیات اجرا کول.

د سمندر له لارې د کیدونکیو عملیاتو کود نوم(پلومین) ؤ، میري ټایم عملیاتي ګروپ یې مسوولیت درلود. رواني جګړه د (هیومی ډور) په شفري نامه سایکالوجیکي عملیاتي ګروپ د بېلابېلو رادیویي ترانسمیترونو په واسطه روان کړی ؤ چې توند او نرم تبلیغات یې کول، په دې کې ځینو ترانسمیترونو داسې ښودله چې ګواکې د شمالي ویتنام له دننه څخه فعالیت کوي.

د انتقال او لیږد خدمات د مطالعاتي او څارنې ګروپ لوژیستکي څانګې سرته رسول، چې د مرستو لپاره یې د امریکا د پوځ د جنسي لوژیستیکي خدماتو ادارې او د سي آی اې د لوژیستیکې خدماتو ډېرې پټې اډې ته چې په اوکیناوا کې وه مخه کوله.

د لانګ تهنه له کمپ پرته، مطالعاتي او څارنې ځواک ته له سي آی اې څخه ۲۰زره تنه تر روزنه لاندې مامورین هم په میراث پاتې شول، تردې مهاله شمالي ویتنام ته، دننه ویستل شویو ټیمونو شمېر تر شلو واوښت. له هغوی څخه بېل، ایزی، ریمس او ټربلن او یو تن جاسوس ایرس خوندي پاتې شول، له روزل شویو جاسوسانو څخه لږ کسان له معیار سره برابر وو، شکمن جاسوسان په بېلابېلو ټیمونو کې په شمالي ویتنام کې راکوز کړای شول چې هلته ټول ونیول شول، او په دې ډول یې ځانونه ترې بیغمه کړل، پاتې نور یې له خوندي ټیمونو سره د ملګري کیدو لپاره واستول.

د مطالعاتي او څارنې ګروپ (اس او جي) له جوړېدو درې اونۍ وروسته، میري ټایم عملیاتي ګروپ خپل لومړنی ماموریت پیل کړ. د فبروري پر ۱٦مه د دې ګروپ د سمندري ټیم درې بیړیو د یوه پله د الوزولو لپاره پر

ساحل د سمندري کوماندويانو د پلي کولو هڅه وکړه، خو د شمالي ويتنام ساحلي توپخانې په توندو ډزو د دوی دغه هڅه ناکامه کړه، څو ورځې وروسته يو بل ماموريت هم ناکام شو او په هغو کې اته تنه سمندري کوماندويان ووژل شول.

بيا هم د جولای پر ۳۰مه د سمندري ټيم پينځو کيښتيو هېجاپونګ ته نږدې د دښمن پر ساحلي رادارو بريد وکړ، داګسټ پر دوهمه نيټه شمالي ويتنام د ټونکن په خليج کې د تارپيډو ګړنديو کيښتيو په واسطه د امريکا پر خطرناکه ميډوکس بېړۍ ځوابي بريد وکړ. سبا ته يې د امريکايي سمندري ټيم کيښتيو پر يوه ساحلي رادار بل بريد وکړ.

د اګسټ پر ۴مه د امريکا پر دې ګواښ سربېره چې که د دوی پر جنګي بېړيو نور بريدونه وشي نو بدې پايلې به ولري، خو د شمالي ويتنام تارپيډو کيښتيو د امريکا پر ترنر جوای جنګي بېړۍ بريد وکړ.

د اګسټ پر پينځمه د امريکا د سمندري ځواک اووم کنډک يوې بېړۍ د دښمن د تارپيډو کيښتيو پر اډه ځوابي بريد وکړ. دوې ورځې وروسته د امريکا کانګرس د (ټونکن خليج) قرارداد پاس کړ او پر امريکايي پوځ د بريدونو د ماتولو لپاره يې د ولسمشر له لوري د بنديز د لرې کولو پرېکړه تائيد کړه.

په اپريل کې سايګون ته د سفر پر مهال د دفاع وزير ميکنا مارا غوښتنه وکړه چې د جنوبي ويتنام پوځ د کهې سنه په لويديز کې جاسوسي ماموريتونه بايد سرته ورسوي. هغه دا ومنله چې ويتناميان د امريکا له مرستې پرته دا کار نشي کولای، ځکه خو هغه د ځانګړيو ځواکونو افسرانو

ته حکم وکړ چې له هغوی سره لاړ شي، د دې ماموریت کود نوم (لیپنګ لینا) کېښودل شو، هغه امر وکړ چې په یوه میاشت دننه کې باید دغه عملیات پیل شي، خو لومړنی جاسوسي ټیم د جون تر ۲۴مې پورې روان نه کړای شو، خو پر لومړي ټیم پسې راتلونکې اونۍ پینځه نور ټیمونه چې په هر یوه کې اته تنه ویتنامیان وو، د لاوس دننه کوز کړای شول، خو له دې ۴۸ کسانو څخه یوازې ۴تنه بېرته ژوندي راستانه شول، نور ټول ووژل او یا ونیول شول. کوم کسان چې ژوندي راووتل هغوی د (هوچي من لارې) په موندلو بریالي شول. دوی وویل چې دا د سرکونو او خوړونو یو جال دی، داسې پوښل شوي چې له فضا څخه نه ښکاري او پر هغو په لوی شمېر پوځي لارۍ او پوځي کاروانونه، له وېرې او خطر پرته تګ راتګ کوي.

د ۱۹٦۵ز په پیل کې له تصویرونو څخه څرګندیده چې د هوچي من لارې پراختیا مومي، د امریکا د هوایي چلن یوه پیلوټ د شمالي ویتنام او لاوس په منځ کې په (موګیا دره) کې د یوه نوي جوړېدونکي سرک تصویر واخیست. د مارچ پر اتمه له اوږده انتظار وروسته مطالعاتي، څارونکي ګروپ دا اجازه ترلاسه کړه چې د خاصو ځواکونو مامورین د هوچي من د لارې د جاسوسۍ لپاره وګوماري.

دغه مهال په ویتنام کې د امریکا عملیاتي مرستندوی ځواک قوماندان، ډګروال کلایډ رسل د مطالعاتي څارونکي ګروپ قومانده ډګروال ډونالډ بلیک برن ته وسپارله چې د چریکي جګړو په نړۍ کې یو پېژندل شوی نوم ؤ. نوموړی په دوهمه نړیواله جګړه کې، د جاپاني قواؤ لخوا د فلیپین له نیولو وروسته، له باټان څخه وتښتید، د شمالي لوزان په غرونو کې یې

## د سي آی اې پټې جګړې

يو شل زره کسيز د مقاومت ګروپ جوړ کړ، د دې پوځ له پينځو کنډکونو څخه يو د (ايګوريټ) قبايلو څخه ؤ چې د سرونو ښکاريان بلل کيدل، د بليک برن د سرونو ښکاريانو په نامه دې چريکانو د امريکا د پوځ لپاره خدمت کاوه.

د بليک برن په قومانده د مطالعاتي څارونکي ګروپ لومړني لوی عمليات د(شاينتنګ براس) وو چې د هغه تر قوماندې لاندې د خاصو ځواکونو (سپيشل فورس) د افسرانو تر حکم لاندې له کرايي پوځيانو څخه جوړو ټيمونو، په لاوس کې د جاسوسۍ ماموريت ترسره کاوه، دغه ماموريت د عملياتي مرستندوی ځواک د يوه نوي يونټ (د اراضي د مطالعې ګروپ) لخوا سرته رسولو چې قومانده يې له ډګروال سايمنز سره وه.

د پينځو ټيمونو د مشرتابه لپاره ١٦تنه داوطلب پوځيان په اوکيناوا کې د خاصو ځواکونو له (هوايي کوماندو) څخه وګومارل شول. له روزنې وروسته هغوی جنوبي ويتنام ته راوستل شول، دلته د لونګ قبيلو کسان دوی ته وسپارل شول، دغه قبيلوي کسان سخت جنګيالي وو او د سي آی اې تر قومانده لاندې يې په پټو عملياتو کې ښېساري خدمتونه سرته رسولي وو.

د ټيم هر امريکايي غړي يو شفري نوم درلود چې له هغو څخه يې حيثيت معلوم ؤ، د ساري په توګه د قوماندان (يو-صفر) او د مرستيال يې (يو-يو) او د ټيم د مخابرې مسوول ته(يو-دوه) شفري نوم ورکړل شوی ؤ. د مخابرې کارولو لپاره (يو) شفري نوم ورکړل شوی ؤ او د ټيم ډله ايز نوم بيا د امريکا د کوم رياست نوم غوره شوی ؤ.

د عملیاتو لومړۍ موخه جنوبي لاوس ؤ، هلته د شمالي ویتنام د پوځ د اډو او غونډو په اړه معلومات هدف وو، تر څو هوايي ځواک پر هغوی بمباري وکړي.
په دوهم پړاو کې د (هیچټ ځواک) په نامه خوځنده ضربتي ګروپونه جوړول په پام کې وو، چې د هلیکوپترو (څرخیو) په واسطه په شمالي ویتنام کې ښکته شي او پر اکمالاتي لارو د خرپ او ترپ عملیات وکړي.
درېیم پړاو په لویه کچه د غرنیو قبایلو ګومارل او د هغوی د غیر منظمو ګروپونو جوړول وو، خو په لاوس کې د امریکا سفیر ویلیم سلیوان د دې پلان مخالفت وکړ، وې ویل چې عملیات باید د لاوس او جنوبي ویتنام په حدودو کې پاتې شي. هلیکوپترې باید یوازې په بیړنیو حالاتو کې د کسانو د ایستلو لپاره وکارول شي.
ډګروال سایمنز په دې موده کې په ډانانګ کې د امریکا په ستره پوځي اډه کې د ډګرمن ري کال ترقوماندې لاندې د (شایننګ براس) د قوماندې او کنترول مرکز جوړ کړی ؤ، تر دې وروسته یې له ډانانګ نه جنوب لویدیز لور ته ٦٠ کیلومتره لرې د تام ډک خوشې شوې امریکایي اډې د ضربتي ګروپونونو کمپ جوړ کړ، چې دلته د ټیمونو د استوګنې او د هلیکوپترو د تیل اچولو امکانات هم وو. د دې پوځي مرکز قومانده د ډګرمن چارلي نارټن په لاس کې وه. په داسې حال کې چې عملیات د تورن لیری تارن تر څارنه لاندې کیدل، هغه د فنلنډ اوسیدونکی ؤ او په ۱۹۴۰ز کې یې له شوروي اتحاد سره جګړه کړې وه، په یو ځل عملیاتو کې هغه له خپل چریکي ګروپ سره په یوه غلچکي برید کې درې سوه روسي پوځیان وژلي

وو. ښېله دې چې د دوی د یوه پوځي پزه دې وینې شي. نوموړی بیا له جرمنیانو سره ملګری شو. له جګړې وروسته چې کله بېرته فنلنډ ته راستون شو، د دې له امله چې روسان ورپسې وو ونیول شو، خو په تېښته بریالی شو او امریکا ته لاړ، چې هلته د امریکا د پوځ د یوه پخواني منصبدار په واسطه د امریکا تابعیت ورکړای شو، چې بیا په امریکایي پوځ او ورپسې په خاصو عملیاتي ګروپونو کې شامل شو. له څه مودې وروسته هغه په ۷۷یم خاص ځواک کې شامل شو.

په کام ډک کې د تارن مرستیال تورن سلی فونټین یو برتانوی ؤ چې د کوریا په جګړه په امریکایي پوځ کې شامل شو.

لومړني شاینګ براس عملیات د ۱۹۶۵ز د اکتوبر پر ۱۸مه ماښام مهال پیل شول. جاسوسي آیوا نومی ټیم د چارلس پیري په مشرۍ له کام ډک څخه په دوو هلیکوپترو کې سرحد ته نږدې د کوزیدو په سیمه کې پلي شول. یوه درېیمه څرخۍ هم په هغوی پسې راغله، چې د دښمن د برید په صورت کې پلي کړای شوي کسان بېرته وباسي. د مرستندویو ډزو او هوایي ځواک د پوښښ بندوبست هم شوی ؤ، دواړو څرخیو ټیم پلی کړ او بېرته ستنې شوې. درېیمه هلیکوپتره هم په هغوی پسې ورغله خو ورکه شوه چې له هغې وروسته د هغو او د تورن لاري تارن په ګډون د نورې عملې هیڅ درک معلوم نه شو.

دغه ټیم چې کوم مهال د هدف په لور روان شو نو هوا ډېره خرابه وه. د دوی موخه د لاوس ۱۶۵یمه لویه لاره وه، دلته هغه سیمه وه چې ګومان کیده د شمالي ویتنام پوځ له دې ځایه پر دانانګ توغندي توغوي او ډزې

کوي، د دې سيمې نوم يې (لومړی هدف) وټاکه، هلته چې ورسيدل پيري او د هغه کسانو ته دا معلومه شوه چې دا د ښمن د فعاليتونو د مرکز سيمه ده او دلته د ويتنامي پوځ ځو مرکزونه او لارې دي، د عملياتو په درېيمه ورځ دوی د موټرو د ماشين غړونه واوريدل، چې د پلټنو لپاره ور ووتل نو د ويتنامي پوځ له يوې ډلې سره مخ شول، په جګړه کې د پيري يو تن ووژل شو او نوره ډله له سيمې ووتله، هوا خرابه وه دوې ورځې وروسته يې مخابرې کار وکړ او دوی هوايي مرسته وغوښتله، چې بيا يې د څرخيو په واسطه له وان څخه را وايستل، کام ډک ته له رسيدو وروسته، پيري په هغه سيمه کې پر ځينو اهدافو بمباري وکړه چې دوی هلته ليدلي وو، په هغو کې يو شمېر د وسلو لويې ذخيرې هم وې. د نومبر پر دوهمه ماښام د ارزونې ټيم د (الاسکا) د بريدګي ډک وارن په مشرۍ له سرحده پورې غاړې ته کوز کړای شول، د دوی موخه د شمالي ويتنام د پوځ د راټوليدو هغه سيمه وه چې دوی پر جنوبي ويتنام د بريد لپاره ترې کار اخيست، دلته دومره ګڼ واښه او بوټي وو چې فيل پکې ورکيده، څلورمه ورځ دغه ټيم له دښمن سره مخ شو چې د دښمن پوځيان ووژل شول، ټيم له هغه ځايه وتښتيد خو دښمن ورپسې شو. وارن خپل ټيم يوې جګې غونډۍ ته وخيژاوه، له هغه ځايه يې په مخابره له مرکز سره اړيکه ونيوه، دښمن تر دې مهاله غونډۍ کلابنده کړه او وښو ته يې اور واچاوه، ډېرې زر ايف ټنډر جنګي الوتکې راورسېدې هغوی پر دښمن بمباري وکړه او په دې ترڅ کې يې د هليکوپترو په واسطه ټيم له دې ځايه وايستلو، له بېرته ستنيدو

وروسته وارن د ایف اې سي د یوې الوتکې په واسطه بیا دې سیمې ته ورغی په یوه پله او څو ودانیو یې بمباري وکړه.
تردې وروسته دغه ډول عملیات د ورځې معمول وګرځېدل، ټیمونه به یې کوز کړل. اهداف به یې په نښه کړل او د اړتیا پر مهال به یې مخابروي اړیکه ونیوله او هوایي مرسته به یې وغوښتله.
د ۱۹٦۵ز د دسمبر پر ۱۱ مه د امریکا هوایي ځواک لومړی ځل په لاوس کې بمباري وکړه، ۲۴ بي ۵۲ سټریټوفورټریس الوتکو د (آیوا) ټیم له خوا په نښه شویو سیمو بمباري وکړه، تر دې مهاله پورې د عملیاتو (شایننګ براس) مرکز د لاوس جنوب لور ته تللی ؤ.
دغه سیمه د جنوبي ویتنام د منځنۍ جګې سطحې سره تړلې وه، عملیات د (ډاک ټوکې) له هوایي ډګره وشول. پردې سربېره د ۱۱۰ لمبر لویې لارې پر سر د شمالي ویتنام پوځ د کمپونو او لارو معلومات یې وکړل، د عملیاتو لومړي دوه ټیمونه (کنساس او ایډاهو) له دښمن سره مخامخ شول، په دوهم ټیم کې د ننګ قبایلو یو تن ووژل شو او یو تن امریکایي ټپي شو.
د دسمبر تر پایه د (شایننګ براس) تر څارنې لاندې ۸ ځله عملیات ترسره شول، له هغو څخه شپږ ټیمونه د شمالي ویتنام پوځ د اډوارډ لارو په اړه معلومات راوړل او بېرته راستانه شول. د دغه معلوماتو پر بنسټ په لاوس کې د شمالي ویتنام د پوځ د اکمالاتو او تګ راتګ د نظام د ریښتیني تصویر په رغولو کې ډېره مرسته وشوه. د (هوچي من لارې) د هغو لویو سرکونو او لارو یو جال ؤ چې د روسانو لخوا ورکړل شویو لاریو ته جوړ شوي ؤ. دغه لارې ډېرې کلکې ستر او اخفا شوې وې او د وریځو په شپو

کې به نږدې سل لارې په کاروانونو کې روانې وې چې له فضا نه د هغو لیدل او تر برید لاندې نیول یې عملاً ناشوني کیدل. له دغو لویو لارو څخه وړوکي وړوکي نور سرکونه هم تللي وو، چې د ویتنامي پوځ پلیو کسانو به پیټي پرې وړل، یا به یې په لویو موټرسایکلونو بارول او وړل به یې. دغه ټولې لارې په بوټیو او د ونو په څانګو پوښل شوې او ستر او اخفا شوې وې، چې کاروانونو به د ونو په منځ کې د تګ لورې بدلاوه او تېریدل به. په ټاکل شویو ځایونو کې پوځي مرکزونه او د وسایلو د پارک لپاره ځایونه غوره شوي وو، چې د امریکا د عملیاتي ګروپونو لخوا د هغو ځایونه افشا کړای شول.

د امریکا له استخباراتو سره د معلوماتو د کمي حالت داسې ؤ چې د دغو جاسوسي ګروپونو پر لومړیو راپورونو یې هیڅ باور نه کاوه، یو ځل چې کله د کوم کاروان د تېریدو خبر ورته ورسید، نو دوی هغه مهال پر هغو باور وکړ چې څو ورځې وروسته یوې الوتکې د هغه کاروان تصویرونه واخیستل.

د ۱۹٦٦ز په پیل کې په لاوس کې د امریکا سفیر ګیلوان د استخباراتي ګروپونو پر فعالیتونو بندیزونه نرم کړل او هغه پردې راضي شو چې د لاوس د ټول دوه سوه میله اوږده سرحد په اوږدو کې تر ۲۰میله دننه عملیات کولای شي. هغه دا اجازه هم ورکړه چې په څرخیو کې دننه لاړ شي، ځکه خو د جاسوسي عملیاتو د ټیمونو شمېر له پینځو نه شلو ته لوړ شو، د هغو لپاره د افرادو ګومارلو لپاره دې اداري مونټاګنارډ قبیلو ته مخه کړه.

## د سي آی اې پټې جګړې

ډګروال سایمنز له بېلابېلو قبیلو د ساري په توګه رهیډ، جارایي، سیدانګ، او برو څخه د خلکو دګمارلو دنده تورن سلي فونټین ته وسپارله.

ډګروال ډونالډ بلیک برن، د جاسوسي ماموریتونو لپاره په درې پړاوونو کې پروګرام چمتو کړ. لومړی پړاو دا چې د شمالي ویتنام د پوځیانو د اهدافو ځایونه پیدا کړي. دوهم پړاو د برید کوونکیو ټیمونو د ننه بیولو پړاو ؤ، او درېیم پړاو د هوچي من پر لارو د وېرې او ترهې خپرولو لپاره د ځایي ډلو منظم کول وو.

تر جولای پورې په لاوس کې ۳۸ د ارزونې او څار ماموریتونه بشپړ کړای شول، دغه مهال په غیر پوځي سیمه کې او د هغو په لویدیز کې د لاوس دننه پر ۹مه لویه لاره د عملیاتو لپاره په کهې سنه کې د خاصو ځواکونو په اډه کې ځینې ټیمونه ځای پر ځای شول.

له کهې سنه څخه د عملیاتو له پیلیدو څو اونۍ وروسته دغه جاسوسي ګروپونو لومړی لوی زیانونه وګالل. لومړی لوی زیان د ایچ ۳۴کنګ بي څرخۍ الوتکې ؤ چې د عملیاتو پر مهال راوغورځیده او پکې سپاره ټول کسان ووژل شول. درې اونۍ وروسته د جګتورن هیری ډی وهیلن په مشرۍ یو ټیم د کهې سنه په لویدیز کې کوز کړای شو، د عملیاتو په درېیمه ورځ هغوی د اوبو لپاره سیند ته نږدې ودریدل. د ټیم کپتان تورن ویلم لاز او د مخابرې مسوول د اوبو لپاره سیند ته ورښکته شول، خو هلته دښمن کمین نیولی ؤ او پر دوی یې ډزې وکړې. هغوی ځانونه سیند ته واچول، نور یې د اوبو له بهیر سره ښکته لاړل خو جګتورن وهیلن د اوبو مخالف سمت ته له مرمیو ځان ویوست او یو ځای د اوبو پر غاړه پټ شو.

لږ ځنډ وروسته هغه د خپلو ملګريو بغارې واوريدې چې ونيول شول. دښمن هغوی په ګوليو وويشتل او وې وژل، وسلې مخابرې او نور سامان يې ورسره واخيست او لاړل، جګتورن وهيلن د ګردونو او وريځو تر راپريوتو پورې هلته غلی ؤ، بيا يې په مخابره د ژرخيو مرسته وغوښته چې ژرخی الوتکه ورته راغله او هغه يې ورسره پورته کړ.

د ۱۹٦٦ز په سپتمبر کې يې جاسوسي ګروپ ته يوه اضافي دنده وسپارله، د کال له پيله د غورځول شويو الوتکو د عملې موندلو ته پام ور واوښت. دغه کار يې د پلټونکي ګروپ عملې ته وسپاره خو هغه پکې ناکام شو، بيا يې د امريکا د هوايي ځواک د فاسفيک د هوايي ځواک، ځانګې قوماندان ډګروال هيري ايډر هالټ ته د مسالې د حل موندلو دنده ورکړه.

د ۱۹٦٦ز د سپتمبر پر ۱٦مه د جاسوسي عملياتو يونټ يوه نوې ځانګه د (او پي اس ۸۰) په نامه جوړه کړه، ايډر هالت يې د دې مشر وټاکه.

د دوی دنده داوه چې په عملياتو کې د بې درکه شويو پوځيانو او مامورينو لټون وکړي او په شمالي ويتنام کې د جنګي بنديانو کمپونه پيدا کړي، له موندلو وروسته يې يا له کمونستو چارواکيو نه په رشوت او يا په پوځي عملياتو راخوشي کړي، ځرنګه چې په دې کار کې له بېلابېلو تنظيمونو سره بايد اړيکې نيول شوې وای، ځکه خو (او پي اس ۸۰) ته د اړيکو او ارتباطاتو د مرکز ظاهري نوم ورکړ شو، او عمليات يې په (برايټ لايټ) شفري نامه ياديدل.

لومړی عمليات يې راتلونکي مياشت د اکتوبر پر ۱۲مه د اې-اسکای الوتکې له لويدو سره پيل شول، د الوتکې پيلوټ ډين ووډ توانيدلی ؤ چې

## د سي آی اې پټې جګړې

له الوتکې ځان واچوي او روغ کوز شي، هغه بیا په یوه ځنګل کې پټ شو. هغه ولیدل چې د پونګ بندر او مویي ګیا او هوچي من د لارو په منځ کې کوز شوی دی.

نوموړی له دې ځایه لرې ووت او سبا ته یې په مخابره کې له خپل مرکز سره اړیکه ټینګه شوه، د دې پیلوټ د را ایستلو لپاره یې یوه څرخۍ ور واستوله چې د دوو جیټ الوتکو له لوري بدرګه کیدله، له څرخۍ څخه چې د پړیو زینه ښکته ځړیدلې وه هغه په ونو کې ونښتله چې بیا د هلیکوپترې تیل خلاص شول، بیا د تیلو اچولو لپاره له ساحل څخه وړاندې بیړۍ ته وګرځیدله، د ماښام راتلو له امله دغه عملیات سبا ورځې ته ټال شول.

د اکتوبر پر۳مه د کولوراډو وټیم د بریدمن ټیډ براون په مشرۍ کهې سنه ته نږدې د غیر پوځي سیمې پر لویدیځه څنډه ښکته کړای شول، په دې موده کې ایرو زینا ټیم هم د همدې سیمې په شاوخوا کې کوز شوي وو، هلیکوپترې چې څنګه دغه ټیم کوز کړ او والوته ټیم له څلور لوریو تر برید لاندې راغی. دوی په غلطۍ د شمالي ویتنام د یوه پوځي مرکز په منځ کې راکوز شوي وو. د دې ټیم د ایستلو هڅې د ډېرو توندو ډزو له امله ناکامې شوې، اوه څرخۍ د دې عملیاتو لپاره راغلې وې چې شپږ یې په ګولیو ولګېدې، چې بیا د ټیم مشر(یو-صفر) په مخابروي پیغام کې وغوښتل چې د ټیم د ژغورلو پر ځای په دې سیمه بمبارۍ وکړي. څو دقیقې وروسته ای-اسکای جنګي الوتکو درنه بمباري وکړه.

په حیرانوونکې توګه د دې ټیم ځینې غړي له بمبارۍ روغ پاتې شول، درې ورځې وروسته یې یو مونټانګارډ قبایلي جنګیالی ویوست، هغه بیا وویل

چې دی او د مخابرې مسوول ریډي ویلیمز څه ډول ژوندي پاتې شول، خو د ټیم قوماندان (۱-صفر) تورن ایکویریا او د هغه مرستیال (یو-یو) جم جونز ووژل شول. ویلیمز ټپي شوی ؤ او دوی دواړه په یوه غار کې پټ شول. مونټانګارډ د مرستې لپاره له غاره راووت، خو ویلیمز دښمن ته په لاس ورغی او وروسته یې په دار وځړاوه.

په دې موده کې د کولوراډو ټیم یو لړ بریاوې وګټلې، هغوی د شمالي ویتنام د پوځ د یو شمیر مرکزونو معلومات لاسته راوړل، پردې سربیره هغوی د ویتنامیانو ډېرې تیلفوني خبرې ثبت کړې او بیا بېرته راستانه شول.

د ۱۹٦٦ز په بهیر کې شمالي ویتنام په کلکه دغه خبرې رد کړې چې د دوی پوځونه په جنوبي ویتنام کې دي، خو (آیوا) ټیم دا ثابته کړه چې دا دروغ دي. هغه یې د ۱۱۰ لمبر لویې لارې پر سر ګومارلی ؤ، هغوی د شمالي ویتنام د پوځ څو ډلې لیدلې وې چې هلته ورغلې.

د ټیم کپتان جګړن ډک دوې ورځې وروسته د وژل شویو مامورینو د مړیو د راوړو لپاره واستول، د جګړن لاز مړی ونه موندل شو، خو د مخابرې د مسوول ډونالډ سین یې په داسې حالت وموند چې پټ یې بمونه پرې تړلي وو.

د مطالعاتي ټیم څارونکي او د دوی د عملیاتو دومره سخت امنیت نیول شوی ؤ چې، د عملیاتو پر مهال به کوم کسان وژل کیدل د هغوی کورنۍ ته دا معلومات نه کیدو چې هغوی چېرته او څه ډول ووژل شول، همدغسې د دې جاسوسي ټیم د جاسوسي معلوماتو د شریکولو پر مهال هم دغسې

## د سي آی اې پټې جګړې

له راز ساتلو څخه کار اخيستل کيدو، معمولاً به د معلوماتو وسيله کوم جعلي چريکي ګروپ ښودل کيدو.

د ۱۹٦٦ز په وروستيو کې جاسوسي ټيم ته، لارښوونه وشوه چې د امريکا د سمندري ځواکونو ضربتي ګروپ ته جاسوسي مواد چمتو کړي، دغه ځواک پر دې ګومارلی ؤ چې د شمالي ويتنام دوې فرقې غير پوځي سيمې ته ورټيل وهي. سمندري ضربتي ځواک د غير پوځي سيمې په جنوب کې د (تين) په ساحه کې مورچل نيولی و، چې پر دوی له لرې د دښمن دوو فرقو پرلپسې ډزې کولې خو د هغوی د مورچل نه معلوميدو.

د کهې سنه پر شاوخوا د سمندري ځواک په مرسته د مطالعاتي څارونکي ټيم لومړی ځل عمليات د مني په موسم کې پيل شول، له دې ټيمونو سره د دښمن د تيلفوني خبرو د ثبتولو وسايل وو، دغه وسايل ځکه خطرناک وو چې دښمن ته له همدې نه د دوی د اوسيدو د ځای درک معلوميدو، همدغسې د مخابروي مکالمو د مانيتور وسايل وو چې هغوی پردې هم خبريدل چې مکالمې يې ثبتيږي. لومړنی ماموريت ناکام شو ځکه چې لومړني درې ټيمونه د دښمن د شمېر د زياتوالي له امله له درې ورځو هم لږ موده هلته پاتې شول. د سپتمبر پر ۸مه پر يوه ټيم بريد وشو چې يو امريکايي جاسوس او دوه تنه د ننګ قبيلې کسان ووژل شول.

خو د موسم د خرابۍ له لامله نورې هڅې ونه شوې، پردې سربېره د شمالي ويتنام پوځ الوتکې ويشتونکي توپونه ورسره راوړي وو. د دې معنا داوه چې هغوی به د هليکوپټرو له راتلو سره هغه راغورځوي. ځکه خو دغه دنده (آيوا) ټيم ته وسپارل شوه، د اکتوبر د ۱۴مې په شپه، ۱۴کسيز ټيم د

## د سي آی اې پټې جګړې

امریکا په الوتکو وړونکیې بیړۍ کې سپاره کړای شول. د اکتوبر پر ۱٦مه سهار چې موسم ښه شو نو دوې څرخۍ الوتکې د شمالي ویتنام د څنډو په لور والوتې. په یوه کې ټیم سپور ؤ. دوهمه یې د شمالي ویتنام پوځیانو ته د دوکې لپاره وه، خو له هیلې سره سم چې دواړه څرخۍ څنډو ته ورنږدې شوې تر سختو ډزو لاندې راغلې، خو د پیلوټانو د مهارت او کمال په سبب چاته څه زیان ونه رسید، د ووډز له ځایه اته سوه ګزه لرې (آیوا) ټیم د میډوز په مشرۍ ښکته کړای شو. تر دې وروسته هغه د غونډۍ په لور وړاندې روان شول، خو همدغه مهال دوی ته خبر ورسید چې ووډز ونیول شو. دغه مهال ټیم یوې لویې لارې ته رسیدلی ؤ. میډوز پرېکړه وکړه چې همدلته مورچل ونیسي، لږ ځنډ وروسته د شمالي ویتنام د پوځ یو افسر له درې سرتېرو سره راښکاره شول. میډوز درې واړه په ګولیو ښښه کړل او وې وژل. تر دې وروسته ټیم له دې ځایه ووت، کله چې هلیکوپترې هغوی بېرته پورته کړل او د بیړۍ په لور روان شول، نو سختې ډزې پرې وشوې، ځکه خو دوی دې ته اړ شول چې کیښتۍ ته نږدې ښکته شي. تورن ډین ووډز شپږ کاله په بند کې پاتې شو.

په اکتوبر کې جاسوسي ټیم دوهم خو ډېر لوی (برایټ لایټ، عملیات وکړل. څو اونۍ وړاندې د ویټ کانګ یوه ناراضي چریک یو خبر ورکړی ؤ، ویت کانګ د جنوبي ویتنام د چریکي سازمان(ویتنام کانګ سان) ولسي نوم ؤ، چې د جنوبي ویتنام کمونست ګوند نشنل لبریشن فرنټ، د خپل پوځي ګروپ لپاره په ۱۹٦۰ز کې جوړ کړی ؤ. د هغو مرکزي برخه له ویت من پخوانیو غړیو څخه جوړه وه، وروسته بیا د شمالي ویتنام هغه دوه زره

پوځیان هم پکې شامل کړای شول چې پخوا له شمالي ویتنام څخه را بېل شول او جنوبي ویتنام ته راغلل، هغه ناراضي چریک وویل چې په تېرې جون میاشتې کې د امریکا د رانسکورې شوې پوځي سی ۱۲۳ ډوله الوتکې پیلوټ، کارل اې جکسن په میکانګ ډلټا کې په یوه کمپ کې چې د جنګي بندیانو لپاره دی بندي دی، دغه ځای د جنوبي ویتنام د جنوبي څنډې نه ۹۰ میله شمال لور ته پروت دی، د جاسوسي ټیم لخوا د (کرمسن ټایډ) په نامه یو ماموریت چې د کپتان فرینګ جکس په مشرۍ د ننګ قبیلو له درې کنډکونو څخه جوړ ؤ، عملیات وکړل، فرینک د چکوسلواکیا د مقاومت غورځنګ غړی ؤ چې پر ۱۹۴۸ز کې د کمونیستانو له واکمن کیدو سره امریکا ته وتښتید.

د اکتوبر پر ۱۸مه دغه ځواک له پوځي مرکزه ساک ترانګ ته ورسول شو، له هغه ځایه یې دوی په ۱۲ څرخیو کې یووړل. فرینک پردې عملیاتو ډاډه نه ؤ، ده ته یې د عملیاتو په اړه بشپړ معلومات نه وو ورکړي، یوازې دومره یې ورته وویل چې د کمپ دفاع ډېره معمولي او ساده ده، او ټول عملیات به په شلو دقیقو کې بشپړ شي، هغه خپلو کسانو ته د معمول دوه برابره مرمیو د وړو هدایت ورکړ.

له ساک ترانګ نه تر الوتلو شل دقیقې وروسته د مخې څرخۍ د جګړن چارلي ویسلز په مشرۍ له خپل ټولي سره د کوزیدو سیمې ته ورسیدل، دغه ساحه د ټولو څرخیو د کوزیدو لپاره ډېره وړوکې وه، هغه د کمپ تر څنګ د ویالې پر بله غاړه خپل ګروپ پلی کړ، له دوی سره جوخت د کپتان جیک او دوه نور ګروپه د کوزیدو په سیمه کې راښکته شول،

## د سي آی اې پټې جګړې

همدغه مهال ناڅاپي پر دوی ټولو درنې ډزې پیل شوې. د جګړن فریډلیوس څرخۍ په مرمۍ ولګیده او راوغورځیده او لیوس پکې ووژل شو، دغه ځواک فلج پاتې شو، د مخابرې له اړیکو وروسته د سکای اې- یو الوتکو پر ځای ایف ۱۰۰ سپر سیبر الوتکې راورسیدې او درنه بمباري یې پیل کړه، چې په دې کې پخپله د دغه ځواک زیات کسان ووژل شول، سکای ریډر ماښام مهال راورسیدې خو تر دې مهاله ډېره ناوخته شوې وه. جګړه کری شپه روانه وه، سهار ته جیک او د هغه کسان په جګړه جګړه کې د ویالې بلې غاړې ته ورسیدل او له نورو ګروپونو سره یو ځای شول، هلته یې جګړن لیوس او د هغه د ننګ قبیلو کسانو او جګړن ویسل او د هغه سرتیریو مړي ولیدل. وروسته معلومه شوه چې هغوی د شمالي ویتنام له زر تنو پوځیانو سره مخامخ شول چې په درنو توپونو او ماشیندارو سنبال وو.

یوه اونۍ وروسته (برایټ لایټ) لومړۍ بریا ترلاسه کړه، په شمالي ویتنام کې یې یوه ایف ۱۰۵ ټنډر ډوله جنګي الوتکه راوغورځوله، د هغو پیلوټ ولیدل شو چې له الوتکې یې ځان وغورځاوه او په پراشوټ کې کوز شو. د دې پیلوټ د موندلو لپاره مطالعاتي څارونکي ټیم کپتان فرینک سائس ته دنده وسپارله، هغه اټکل وکړ چې د عملیاتو سیمه ۷۰ میله لرې او د هوچي من تر لارې وړاندې پرته ده، دغه سیمه د مطالعاتي څارونکي ټیم د هلیکوپترو د ډزو له دم نه لرې ده، ځکه دوی په یوه بله څرخۍ (هلیکوپتره) کې اضافي تیل او لاسي پمپ ورسره واخیستل. ماښام مهال سائس او ټیم یې له مرکزه د عملیاتو په لور روان شول. کله چې څرخۍ

## د سي آی اې پټې جګړې

هلته ورسيدلې نو ماښام شوی ؤ، د دښمن پوځيان له هغه ځايه ايله سل ګزه لرې وو، دې ټيم هغه پيلوټ ورسره را واخيست او له څه پېښې پرته روغ رمټ راستانه شول.

*                    *                    *                    *

د جګړې په ټول دوران کې دغه ډول عملياتو دوام درلود. دا د دغه مطالعاتي څارونکي ټيم تر ټولو خطرناک عمليات وو، ځکه چې په هغو سيمو کې به کيدل چې د دښمن زيات پوځونه به پکې وو او د الوتکو ضد وسلې به هم پکې دريدلې وې. ځينې وختونه به د الوتکې ضد توغندي او جنګي جيټ الوتکې هم وې او زيات عمليات به ناکاميدل هم.

د ۱۹٦۴ز له اپريل وروسته د جاسوسي عملياتي ټيم د (ټمبر کاري عملياتو) په نامه شمالي ويتنام ته هم د جاسوسانو استول پيل کړل. له يوه پرته نور ټول دغه ماموريتونه د (هوايي مطالعاتو ګروپ) لخوا ترسره شول. ټيمونه به يې د ۱۲۳ سي ډوله الوتکو په واسطه کوزول، د دغه کال تر دسمبر پورې ۱۲ ټيمونه کوز کړای شول، له هغو نه ۵ ټيمونه د شمالي ويتنام پوځيانو ونيول، يو ټيم د نومبر پر ۱۴مه هغه مهال ووژل شول چې د دوی الوتکه د ډانګ په بندر نومي غره کې ولويده او له منځه لاړه.

د ۱۹٦۵ز کال په بهير کې يې لږ ټيمونه کوز کړل، په مې کې يې هارس نومی ټيم چې نهه تنه پکې وو کوز کړل، تر څو له هغه ټيم سره يو ځای شي چې د ٦۳په اګسټ کې د جګړه مار (ايزي) په نامه استول شوی ؤ. د ٦۴کال په جولای کې هم دې ټيم ته مرسته ور رسول شوې وه. په سپتمبر کې د (ډاګ) نومي ټيم نهه تنه نور هم د هغوی د مرستې لپاره کوز کړای

شول، دوې میاشتې وروسته په نومبر کې دوه نور ټیمونه هم ور واستول شول، د (ټور بلین) نومي ټیم د پیاوړتیا لپاره اته کسیزه (ورس) ټیم ور واستول شو، چې دوه تنه غړي یې د کوزیدو پر مهال ووژل شول. په همدې میاشت کې یې د (رومیو) په نامه ټیم هم کوز کړ چې لس تنه پکې وو.

پر ۱۹٦٦ز کې پینځه ټیمونه کوز کړای شول، لومړی ټیم د مارچ په میاشت کې پلی شو، چې یو غړی یې د کوزیدو پر مهال ووژل شو، پر ۱۹٦۷ز کې پینځه ټیمونه او یو جاسوس په شمالي ویتنام کې راکوز کړای شول، د جنوري پر ۲٦مه لومړنی ټیم د (هیدلې) په نامه په څرخیو کې ورسول شو چې ۱۱ تنه غړي یې درلودل، خو له کوزیدو سره سم ونیول شول. له دوی څخه وروستی ټیم (ریډ دریګن) ؤ چې کله هغوی مخابروي اړیکه ونیوه نو دا شک پیدا شو چې هغوی د دښمن لاسته لویدلي دي. د زیاترو ټیمونو په باب دغه بدګوماني وه چې هغوی له نیول کیدو وروسته د شمالي ویتنام والو تر فشار لاندې فعالیت کوي. خو بیا هم له دې ګروپونو سره د جاسوسي ماموریت د مرکز له لوري د هغوی د دوکه ساتلو لپاره تر ۱۹٦۹ز پورې مخابروي اړیکې ټینګې وې.

په ۱۹٦٦ز کې د جاسوسي ماموریت په یونټ کې د هوایي څارنې ګروپ او برائټ لایټ وړتیاوې هغه مهال زیاتې شوې چې د امریکا د هوایي ځواک ۹۰یم د خاصو عملیاتو کنډک ورته راغی، تر اوسه پورې دغه کنډک په تایوان کې د چنګ چوان پر هوایي ډګر کې ځای پر ځای ؤ. له دې کنډک سره سي ۱۳۰ هرکولس ډوله الوتکې وې چې په ډېرو پرمختللیو تخنیکي او کشفي وسایلو سنبال وې.

## د سي آی اې پټې جګړې

په دې الوتکو کې داسې سیستم هم نصب ؤ چې لاندې یې وځړوي او د کومې غورځیدلې الوتکې عمله راپورته کړای شي، خو دغه نظام یوازې په هغو ځایونو کې بریالی ؤ چې د دښمن پوځونه هلته نه وي، خو په لاوس او شمالي ویتنام کې داسې نه وو. دې الوتکو څو دغسې عملیات وکړل خو ټول ناکام شول. د ۱۹٦۷ز په مارچ کې د (شايننګ براس) نوم یې په (پر یري فائر) بدل کړ. ځکه چې پخوانی شفري نوم افشا شوی ؤ. په همدې کال په جنوري کې د امریکا په پوځ کې د ویتنام د جګړې عمومي قوماندان ویلیم ویست مدرلیند دا طرحه ورکړه چې د عملیاتو ساحه پراخولای شي او د لاوس دننه ښه وړاندې هم کسان کوزولای شي. د امریکا سفیر هنری کابوټ لاج د دې د سیاسي پایلو د ارزونې ژمنه وکړه، خو تر پلې کیدو وړاندې د هغه پر ځای ایلس ورت بنکر وټاکل شو او دغه طرحه بېرته شنډه شوه.

د ۱۹٦۷ز د جولای په نیمایي کې معلومه شوه چې په لاوس کې هم د (پریری فایر) ټیمونو د لټون لپاره د شمالي ویتنام پوځ ځانګړې ډلې کاروي، د جګړن سالم المندریز په مشرۍ یوه ټیم د هیواد لویدیز ته په ٦۰ میلۍ کې د یوه سرک څارنه کوله چې د شمالي ویتنام پوځیانو ناڅاپي برید پرې وکړ المندریز او د هغه د مخابرې مسوول جګتورن هیري براون یې ووژل، خو د هغه مرستیال جګتورن رابرت سلیورن د ټیم د ننګ قبیلې له پینځو غړیو سره پردې بریالي شول چې وتښتي او خوندي ځای ته ځانونه ورسوي.

## د سي آی اې پټې جګړې

پر المندریز برید کوونکي، د شمالي ویتنام د ۳۰۵یم لمبر د هوایي کوماندو غونډ پخواني غړي وو چې په ۱۹٦٥ز کې جوړ شوی ؤ، خو د ۱۹٦٧ز د مارچ په ۱۹مه دغه غونډ ړنګ شو او د ۳۰۵یم لمبر خاص ځواک ترې جوړ شو. دد ې ځواک غړي د شمالي ویتنام د کوماندو پوځیان وو، په روسیه کې له روزل شویو دغو کوماندویانو سره تر نورو ښې وسلې وې او له سیاسي اړخه دوی تر نورو ډېر د باور وړ وو. د غونډ له ړنګیدو وروسته د دوی زیاتره غړي په (سیپر) ځواک کې شامل شول چې په جنوبي ویتنام کې دننه د اهدافو د له منځه وړ روزنه ورکړای شوه، له نورو نیمایي کسانو څخه یې یو خصوصي کنډک جوړ کړای شو چې درې ټولي یې درلودل. دوی ته یې د امریکا د جاسوسي ټیمونو د کشف او له منځه وړو روزنه ورکړه. هر ټولي د فعالیت ځانګړې سیمه درلوده، هغوی پل پیژندونکي او روزل شوي سپیان هم درلودل.

دغو ځواکونو پر امریکایي جاسوسي ټیمونو ځمکه سره کړه، په یوه برید کې یې د امریکا د یوه ټیم درې غړي ووژل، په دوهم برید کې ټول ټیم بې درکه شو، د (مین) په نامه ټیم د مناو جګړن ډیوید بیکر په مشرۍ د شمالي ویتنام د پوځي اډې سیمې ته د جاسوسي ماموریت لپاره واستول شو، دوی په دې ماموریت کې دا احساس کړه چې تر څارنه لاندې دي، هڅه یې وکړه چې وتښتي، خو جګړن بیکر او ټیم یې پردې ونه توانید چې پل پیژندونکیو ته دوکه ورکړي، په پل پیژندونکیو پسې د دښمن پوځیان هم ور ورسیدل، لږ وخت ورسته بیکر داسې احساس کړه چې دښمن

## د سي آی اې پټې جګړې

غواړي دوی د ختيځ لور ته ور ټيل وهي، تر څو چې په يوه کړنګ کې راګير شي او يا پراخه ميدان ته ووزي.

دريمه ورځ سهار دښمن بيا هڅه پيل کړه چې دوی د ختيځ لور ته ور ټيل وهي، او بېکر په تنګ شو له دښمن سره يې د ټکر پرېکړه وکړه. لږ ځنډ وروسته يې د بوټيو يو کتار د کمين لپاره غوره کړ، دښمن په دوی پسې بل لور ته ووتل. لږ ځنډ وروسته د دښمن ۹تنه راغلل د دوی له کمين نه درې متره لرې په ډوډۍ کيناستل، دوی چې په ځير وکتل وپوهيدل چې دا د دښمن د قوماندې ټولی دی چې، قوماندان، دوه تنه مرستيالان يې او دوه تنه چيني سلاکاران ورسره وو، دوی تر ۴۰دقيقو پورې هغوی وڅارل، خو د ټيم د يوه تن ټوخي دښمن پرې خبر کړ او بريد ته چمتو شول، خو د مين ګروپ وار ړومبی کړ او په يوه ضربه يې هغوی ټول ووژل، د هغوی له وژل کيدو سره د ويتناميانو په ليکو کې ډېره ګډوډي راغله او دوی ته د وتلو فرصت برابر شو چې بيا يې په څرخيو ترې پورته کړل.

*　　　　*　　　　*　　　　*

جاسوسي ټيم ته په ۱۹٦٦ز کې د ډګروال جان سن ګلاوب له راتلو سره په دې ټيم کې ډېر بدلونونه راغلل، د دوی افراد زيات شول، د امريکايي مامورينو شمير يو نيم زر او د ويتنامي مقامي ځواکونو شمېر يې اوه زره تنو ته ورسيد، ډېر خوځند ګروپونه جوړ شول چې(هيچټ فورس) يې ورته ويل. معمولاً به په يوه ټيم(کمپنۍ) کې څلور تنه د خاصو ځواکونو او ۱۲۰ تنه مقامي پوځيان شامل وو.

یوه لوی بدلون د اراضي د مطالعې ګروپ نظم اغیزمن کړ، تر ۱۹٦٦ز پورې عملیات د ډانانګ د قوماندې له مرکزه کنترولیدل، او ټیمونه بیا له کونتم، کهې سنه، ډانانګ او پوبای له اډو څخه استول کیدل، سن ګلاوب ګروپ په درې برخو وویشه. په ډانانګ کې د شمالي قوماندې او کنترول ټیم ۀ چې شمالي ویتنام او لاوس یې د مسوولیت ساحه وه، په کونتم کې د منځنۍ ساحې د قوماندې ټیم ۀ چې جنوبي ویتنام او د لاوس او کمبودیا شریک بریدونه، سیمې یې تر فعالیت لاندې راتلې، او په بان می ټاوټ کې د جنوبي قوماندې مرکز ۀ چې د فعالیت او کنترول ساحه یې کمبودیا وه.
د شمالي ویتنام والو د ۱۹٦۰ز په لسیزه کې په اصطلاح د بې طرفه کمبودیا دننه په کمپونو کې عملیات ترسره کول، دوی هلته د (سهانوک لاره) جوړه کړې وه، چې د کمبودیا د سهانوک دل بندر(وروسته دریم کمپونګ) نه په شمال او ختیځ کې د جنوبي ویتنام په لور د لارو یو جال ۀ. د وخت په تیریدو دلته هم د (هوچي من) د لارو په څیر د ساتنې پوستې او د موټرو او کاروانونو تم ځایونه او د اکمالاتو دیپوګانې جوړ شول، په دې موده کې کمبودیا شمالي ویتنام ته د کال دوه نیم لکه ټنه وریژې ورکولې، او د سهانوک دل له بندره یې چیني وسلو ته اجازه ورکوله.
په ۱۹٦۵ز کې د کمبودیا د صدراعظم شهزاده نورو دم سهانوک له لوري له امریکا سره د دپلوماتیکو اړیکو له شلولو وروسته، شمالي ویتنام په کمبودیا کې له خپلو مرکزونو څخه په جنوبي ویتنام کې لاسوهنې زیاتې کړې، تر ۱۹٦٦ز پورې اټکل زر ټنه چینایي وسلې او پوځي وسایل د

## د سي آی اې پټې جګړې

سهانوک دل بندر له لارې په کمبوديا کې د شمالي ويتنام ډيپوګانو ته ورسيدل.

له هنويي سره د سهانوک اړيکې له هسکو ټيټو تېرېدې، له ۱۹۶۳ز څخه وروسته د ويت کانګ او کمبوديا د پوځونو تر منځ څو ځله نښتې وشوې چې په هغو کې په سلګونو کمبوديايي پوځيان ژوبل او ووژل شول، په ۱۹۶۶ز کې هغه برالا دا ومنله چې د شمالي ويتنام پوځ او ويت کانګ د سرحد سره په اوږدو کې پوځي مرکزونه جوړ کړي دي. تر دې مهاله د جانسن حکومت، چې غوښتل يې د کمبوديا واکمن له کمونيستانو لرې شي، پردې مساله يې له کمبوديا سره له مخالفت څخه ډډه کوله، او له دې يې سترګې پټولې چې په کمبوديا کې دننه د ويتنام او ويت کانګ د لاسوهنو شواهد مخ پر زياتيدو دي، خو د ۱۹۶۷ز په پيل کې جنرال ويلم ويست مورلينډ او د آرام سمندر د قواو عمومي قوماندان لخوا د وړانديزونو پر بنسټ د مطالعاتو او څارنې ګروپ ته دا اجازه ورکړای شوه چې د کمبوديا دننه د (ډينيل بون) په نامه د ارزونې ماموريت ترسره کړي.

خو د دې لپاره د بهرنيو چارو وزارت ډېر حدود وټاکل، دغه عمليات بايد بشپړ په داسې ډول ترسره شي چې شک او ترديد پکې نه وي، که د ارزونې ټيمونه په ستونزو کې راښکيل شي نو دوی ته به يوازې د ګنشپ هليکوپترو له لارې هوايي مرسته ور رسيږي. ډزې به دوی يوازې د خپلې دفاع لپاره کوي، د جګړې پر وخت به يوازې ځنګلي شنې جامې اغوستلای شي. پر وسلو يې بايد د پرديو هيوادونو نښانونه او ټاپې وي، او پر يوه وخت له دوو يا درې تنو زيات جنګي بنديان نشي ساتلای.

د کمبوديا کومه سيمه چې زياته د شمالي ويتنام تر واک لاندې وه، هغه د دې هيواد په شمال ختيځ کې وه، دا د رتناکري ولايت شمالي سيمه وه، چې د جنوبي لاوس او شمالي ويتنام ترمنځ پرته وه، په شمال ختيځ کې د جنوبي ويتنام د پليکو ښار ته څېرمه د ۱۹م لمبر لويې لارې پر شاوخوا پنځوس ميله اوږده سيمه پرته وه، چې ويست لېند، نوميږي. په دې وچه او بې اوبو او شاړه سيمه کې امريکايي پوځ کار نشو کولای. خو د شمالي ويتنام پوځ د ويت کانګ په جنوب کې د عملياتو او لاسوهنو لپاره له دې لارې تېرېدل.

په جنوب ختيځ کې د سايګون او پنوم پن په منځ کې پيرتس بيک(د توتي مښوکه) نومې سيمه پرته ده، چې په شمال کې له کمبوديا او د جنوبي ويتنام له ګڼو ځنګلو سره نښتې ده. شمال ختيځ ته د (ډاګس فيس) نومې سيمه ده چې بيا راڅرخي او بېرته د ويتنام له هغې سيمې سره نښلي چې په (فش هک) نامه يادېږي. د پيرټس بېک په جنوب کې سرحد د لويديز لوري ته د ميکانګ سيند بهيږي. د شمالي ويتنام او ويت کانګ د پوځونو پټ مرکزونه او پناه ځايونه په ميکانګ، پيرټس بيک او فش هک په سرحدي سيمو کې وو، چې وړوکي مرکزونه او پټنځايونه يې د ختيځ بريد په اوږدو کې د کمبوديا او جنوبي ويتنام د خاورو دننه وو.

لومړنی ډينيل بون عمليات، د کمبوديا شمال ختيځ په وروستۍ څنډه وشول چې د جنوبي ويتنام له جګو سيمو سره تړلې وه، لومړني عمليات خو بريالي شول، خو دوهم ټيم د ۱۹٦۷ز د جون پر ۱۵مه د لاوس دننه کوز کړای شو، هغوی د شمالي ويتنام پوځيانو ودرول او د هغوی په ډزو يې

## د سي آی اې پټې جګړې

جګتورن بن سنوډن ووژل شو او څرخۍ الوتکه يې رانسکوره کړه، يوې بلې څرخۍ ته يې زيات زيان واوښت.

په راتلونکيو مياشتو کې د ډينيل بون ټيمونو د شمالي ويتنام د پوځيانو د سرکونو، لارو، کمپونو او اکمالاتي ډيپوګانو معلومات راټول کړل. د کمبوديا په سرحدي سيمو کې يې د دوی د پوځي تاسيساتو بشپړ تصوير جوړ کړ، په يوه غصب شوې فش هک سيمه کې د ويت کانګ پوځي مرکز ؤ، په ۱۹٦۷ز کې د (جنکشن سيټي) په نامه يو عمليات د دې پوځي مرکز د نيولو او په سيمه کې د ويت کانګ د نورو مرکزونو د له منځه وړو لپاره پيل کړای شول، په دې عملياتو کې د امريکا ۲۲ او د جنوبي ويتنام څلورو ټوليو برخه درلوده، په عملياتو کې ۲۷تنه د جنوبي ويتنام پوځيان ووژل شول او په زياته اندازه وسلې، مرمۍ، اسناد او خوراکي توکي لاسته ورغلل، خو زيات ويت کانګيان وتښتيدل او کمبوديا ته لاړل.

د ۱۹٦۷ز د خزان په موسم کې د امريکا د جاسوسي ځواکونو ټيمونو د کمبوديا په وروستي شمال ختيځ سرحد کې راټول شول، د سرحد په ختيځ کې د جنوبي ويتنام له سرحده پينځه ميله دننه، د (ډاک ټو) پر مقام امريکايي پوځيان، د شمالي ويتنام د هغو درې جګړو څخه په يوه کې ډېر بد راښکيل شول چې هغوی د ويتنامي پوځ د پام اړولو لپاره پيل کړي وو. پاتې دوې جګړې په سانګ بي او لوک ننه کې روانې وې، زيات شمېر (ډينيل بون) ټيمونه له سرحده پورې غاړې ته د دې لپاره واستول شول چې شمالي ويتنام ته د مرستو رسولو لارې او لوري معلوم کړي، او هغه سرک

معلوم کړي او درک یې ولګوي چې د شمالي ویتنام پوځونو ته پر هغو په لوړه کچه اکمالات کیدل.

د جګتورن لودل سټیونس په قومانده یوه ټیم د ماموریت پر دربیمه ورځ دغه سرک پیدا کړ. او په همدې شپه یې پردې هغه روسي لارۍ ولیدې چې د مرستو پر وسایلو بار وې، سهار دغه لارۍ بېرته راستنې شوې، چې بیا یې پر سرک ونې وغورځولې او ډېر کلک یې ستر او اخفا کړ. دوی د سرک تصویرونه واخیستل او په راستنیدو کې له څلورو ویتنامي پوځیانو سره مخامخ شول، دوی ډزې پرې وکړې او هغه څلور واړه یې ووژل.

د عملیاتو په بهیر کې د د مطالعاتو او څارنې ګروپ کسانو ته هم زیان واوښت، له یوه عملیاتو نه د راستنیدو پر مهال یې چې کله جګتورن چارلي وائټ د څرخۍ په واسطه راپورته کاوه هغه لاندې ولوید او بیا یې هیڅ درک معلوم نه شو.

څو میاشتې وروسته یو ټیم(هیمر) چې د جګړن هیري کروسکې تر مشرتابه لاندې د فش هک په سیمه کې په جاسوسۍ ګومارل شوی ؤ. د شمالي ویتنام له درې تنو عسکرو سره مخ شول، په ډزو کې کروسکې ووژل شو.

*                *                *                *

په دې بهیر کې د سایکولوژۍ عملیاتي ګروپ هم په دروغ پروپاګند او د ناولیو چلوټو په واسطه یو تبلیغاتي جنګ پیل کړی ؤ، د امریکا د مطالعاتي او څارنې ګروپ د ماموریت دغه اداره تر ټولو ډېره پټه وه، ټول ټال یې

۱۵۰تنه مامورين درلودل چې زيات شمېر يې د پټو ادارو کسان وو، يوازې په ۱۹٦٧ز کې د دې ادارې بوديجه ۳٫٧مليون ډالره وه.
د دوی تر ټولو لوی پلان ډانانګ ته نږدې د جنوبي ويتنام له ساحل نه وړاندې د (کولاډ چام) په جزيره کې د کب نيوونکيو د يوه جعلي کلي جوړول وو، د شمالي ويتنام په غاړو کې به يې کب نيوونکي نيول او پر سترګو به يې پټۍ ور وتړلې دې ځای ته به يې راوستل، په عملياتو کې برخه اخيستونکيو دې جزيرې ته د (پيرا ډايز آی ليند) نوم ورکړی ؤ. دلته به يې د دوی ښه عزت او درناوی کاوه او دا به يې ورته ويل چې دوی د شمالي ويتنام په هغه سيمه کې دي چې(سيکرډ سورډ آف پېټرياټک ليګ) آزاده کړې او اوس يې دغه جزيره په لاس کې ده، تر راتلونکيو دوو اونيو پورې به يې ډېر ښه خواړه ورکول او د (اېس اېس پي ايل) او د هغو د نيول شويو ساحلي سيمو په اړه به يې معلومات ورته برابرول، دوی به د مخابرې استعمال ورښودلو او دا به يې هم ورته ويل چې دوی ته پردې مخابره کوم حکم ورکول کيږي هغه څه ډول اوريدای شي، بيا به يې بېرته پر سترګو پټۍ ور وتړلې او د شمالي ويتنام پر غاړو به يې خوشي کړل.
دا هر څه جعلي وو او موخه يې د شمالي ويتنام څارګرې ادارې وې، د دوی منصبدارانو د پټو مخابراتي مرکزونو له خوا د هغو ايجنټانو لپاره چې هيڅ به شته نه وو مخابروي پيغامونه اوريدل، دغه مهال د فضايي څارنې او مطالعې ګروپ الوتکو د خيالي مقاومتي ګروپونو له لوري دوې پاڼې هم تيت کړې.

## د سي آی اې پټې جګړې

په نورو رواني عملیاتو کې (پوایزن پین) هم شامل ؤ، چې د هغو له مخې به یې له سمندر نه پورې غاړې ته داسې لیکونه استول چې د شمالي ویتنام پوځي منصبداران به یې خاین او جاسوس ښودل. ځینې وختونه به په دې لیکونو کې داسې(مایکروډاټ) احکام او هدایات وو چې، ډېر پاک کړه وړه به هم د هغو له مخې شکمن ښکاریدل.

ځینې وختونه به یې د کوم منصبدرا سره ورته د لیک ټیپ تر لاسه کاوه او د هغو په واسطه به یې لیکونه لیکل او بیا به یې په پوسته استول.

د یو بل ډول ماموریت په بهیر کې به یې د شمالي ویتنام د اسنادو په بشپړ ډول جعل کاري کوله، تر دې چې پر هغو به لاسلیک هم اصلي ته ورته ؤ. دغه اسناد به یې د سي آی اې په دښمنو کړیو کې د پوستي نظام له لارې ویشل، چې له دې نه به د دښمن په لیکو کې بدګومانۍ او جنجالونه راتلل او سي آی اې ته به د خپلو چارو د سرته رسولو فرصت په لاس ورتلو.

د سي آی اې له جاسوسي ټیم سره په جنوبي ویتنام کې ډېر پټ راډیویي چینلونه وو، په هغو کې یو داسې ؤ چې داسې یې ښرګندوله چې ګواکي په شمالي ویتنام کې دی. ځینې دغسې ستیشنونه د شمالي ویتنام د سرحد په اوږدو کې د امریکا په یوه الوتکه کې نصب وو، د شمالي ویتنام چارواکیو د هغو ځای نشو پیدا کولای، دغه رادیویي استیشن د هغو بې شمېره راډیوګانو په واسطه خپرونې کولې چې د الوتکو په واسطه لاندې غورځول شوې وې، یا د کښتیو په واسطه په دریاب کې تیت شوې وې، دې راډیوګانو ته یې(پې نټ) ویل، او په داسې ډول جوړې شوې وې چې د

## د سي آی اې پټې جګړې

سي آی اې د مرکز جعلي(هنويي راډيو) چينل پکې واضح اوريدل کيدو او د هنويي راډيو اصلي مرکز به پکې خپ شو.

يو بل خطرناک کار يې د (ايلډسټ سن) په نامه کاوه، هغه دا چې د چين په جوړو شويو کارتوسو او مرميو کې به يې داسې بدلون راوست او جوړې به يې کړې چې له ډزو سره به وسله وچاوديده، دغه مرمۍ يې د شمالي ويتنام له مړيو سره هم پرېښودې، ځينې وختونه به يې دغه کارتوس او مرمۍ په يوه مناسب ځای کې پرېښودل، په دې ډول به مرمۍ د شمالي ويتنام او ويت کانګ پوځيانو ته رسيدې چې وسلې او سړي به پکې له منځه تلل.

د ۱۹٦۸ز په جون کې د دغسې جعلي مرميو او وسلو شواهد هغه مهال افشا شول چې، د شمالي ويتنام زيات شمېر پوځيان له چاودليو وسلو سره مړه ومونډل شول، له دې سره سي آی اې د شمالي ويتنام جعلي اسناد چمتو کړل او د شمالي ويتنام پوځ او ويت کانګ ته يې ورسول، په دې اسنادو کې ويل شوي وو چې چين کومې وسلې چمتو کوي د هغو معيار ټيټ دی، د شمالي ويتنام چارواکيو دغه خبره ومنله او دا د دوی د مخابروي اړيکو له څرګندونو څخه معلومه شوه.

دې رواني جګړې د شمالي ويتنام پوځ او د ويتنام د قوماندې تاسيساتو ته سخت زيان ورساوه، تر دې چې د ۱۹٦۸ز په مې کې شمالي ويتنام د پاريس د سولې په خبرو کې د ګډون لپاره دا شرط کېښود چې امريکا دې له دې رواني جګړې لاس واخلي.

## د سي آی اې پټې جګړې

په دې موده کې د ۱۹٦۸ز په اپریل کې د امریکا د جاسوسي ماموریت مرکز، د اوږد مهال جاسوسانو ګومارلو پر پروګرام غوښتل له سره غور وکړي خو بریالي نه شول، د هغو جاسوسانو زیاتره ټیمونه نیول شوي وو او ځینې یې په پوره باور د شمالي ویتنام له پوځیانو سره ملګري شوي وو، د شمالي ویتنام د یوه پوځي له نیول کیدو وروسته هغه وویل چې په ۱۹٦۲ز کې، کوز کړای شوی یو جاسوسي ټیم اوس د شمالي ویتنام تر فشار لاندې کار کوي. دې پوځي د ټیم نوم (رېمس) وښود، څو اونۍ وروسته شمالي ویتنام د (رېمس) ټیم د نیولو اعلان وکړ، او د امریکا د اس او جي (مطالعاتي څارنې ګروپ) له لوري یې د هغو د دوکې د فعالیت مخه ونیوله، له دې څخه دا شک پیدا شو چې د امریکا په اس او جي ځواک کې دننه، د شمالي ویتنام کوم ایجنټ فعال دی.

په اګسټ کې ویتنام دا افشا کړه چې دوی د دې ګروپ نور جاسوسي ټیمونه هم نیولي دي، اصلاً دغه ټیمونه له کوزیدو سره سم نیول شوي وو او د دوی تر واک لاندې وو، (اس او جي) له نورو ټیمونو سره اړیکې وساتلې او د انتقام اخیستلو پرېکړه یې وکړه. یو دغسې ټیم چې د فانتوم الوتکو له لارې یې د مرستو انتظار درلود، پر هغوی بمونه وغورځول شول، په پایله کې د شمالي ویتنام هغه پوځیان ووژل شول چې ځانونه یې د امریکا د (اس او جي) اړوند ټیم غړي بلل. ځینې وختونه یې د راډیوګانو داسې سیټونه وغورځول چې بمونه پکې ځای په ځای شوي وو. داسې کڅوړې هم وغورځول شوې چې د خوراکي موادو پر ځای پکې باروت وو.

*　　　*　　　*　　　*

## د سي آی اې پټې جګړې

بیا هم د لنډ مهال لپاره چې کوم جاسوسان استول کیدل هغه د شمالي ویتنام د چارواکیو له نفوذ نه خوندي وو، هغوی د شټراټا(د لنډ مهاله ځنګل ساتنې او هدف ټاکلو) پروګرام لاندې کوم جاسوسان واستول، د هغو هدف دا ؤ چې له شمالي ویتنام نه د هوچي من تر لارې پورې سرکونه وڅاري. دغه جاسوسان به د شمالي ویتنام د پوځیانو په بڼه وو، هغوی لږ بریاوې درلودې ځکه چې تر هغو سرکونو پورې رسیدل ورته ګران وو، خو هغوی د پروپاګند د دوو پاڼو په خپرولو بریالي شول. د ۱۳ میاشتو په اوږدو کې دغسې ۲٦ ماموریتونه ترسره شول، د ۱۴ ټیمونو په واسطه ۱۰۲تنه جاسوسان واستول شول چې له هغو څخه ۲٦تنه ووژل شول.
دغه ډول ماموریت د (ځمکې د پرېښتو) په نامه ترسره کیدل، تر دې نامه لاندې یو درجن ټیمونه واستول شول، په هر ټیم کې به د شمالي ویتنام د پوځ دوه یا درې تنه پخواني پوځیان شامل وو. دوی یې په لاوس او کمبودیا کې د دښمن د اکمالاتي لارو د جاسوسۍ لپاره استول. د غه کسانو به د شمالي ویتنام د پوځیانو د احوال وړونکیو په بڼه له پوځیانو سره راشه درشه پیل کړه، هر ماموریت به یوه اونۍ دوام کاوه او بیا به یې دغه کسان بېرته را ایستل. د (سټراټا) په څېر (د ځمکې پرېښتې) هم د شمالي ویتنام والو له نفوذه خوندي پاتې شول.
د ۱۹٦۸ز د نومبر په پیل کې د امریکا د انتخاباتو پر مهال چې د هغو په پایله کې د راتلونکي کال په جنوري کې ریچارډ نکسن د امریکا ولسمشر غوره شو، (اس او جي) ته په شمالي ویتنام کې د ایجنټانو استولو پروګرام ختمولو حکم ورکړ شو. ځکه خو یې بیا د ارجنسي، بورډن او اوډلز په نامه

## د سي آی اې پټې جګړې

د فریب ورکولو ماموریتونو جعلي شبکو غوړولو ته پام واړاوه. دغه درې واړه د فریب ورکولو د (فورې) لوی پروګرام برخه وو.

ارجنسي به پیسې، پیغامونه او نور اسناد استول او په شمالي ویتنام کې یې داسې ذهنیت پیاوړی کاوه چې، د (اس او جي) یو ځواکمن جال غوړیدلی چې دوی پرې خبر نه دي.

د بورډن پروګرام له لارې یې د شمالي ویتنام پوځیان کارول، دوی ته به یې د اس او جي د یوې داسې شبکې په اړه غلط معلومات ورکول چې هغه شبکه به هیڅ نه وه، دوی به یې بیا د خپلو ایجنټانو په نامه په شمالي ویتنام کې راکوز کړل. تر دوی وړاندې به یې له الوتکو داسې پاراشوټ وغورځول چې د وګړو پر ځای به د کنګل ټوټې پکې وې، ځکه خو به دغه پاراشوټ سبا ته هم په ونو کې زنګیدل، او د شمالي ویتنام پوځ به د هغو خیالي جاسوسانو د نیولو لپاره ښه ډیر وخت سرګردانه وو، له هغو ځخه به یې ځینې بندیان په لاوس کې کوز کړل، د دوی په ناخبرۍ کې به یې په سامان کې مخابروي وسایل د جاسوسۍ لپاره ځای پر ځای کړي وو. ځکه خو به چې دغه کسان د شمالي ویتنام د پوځ کومې چونۍ ته لاړل نو د دغه ځای موقعیت به افشا کیدو او د امریکا الوتکو به بمباري پرې کوله.

د اوډلز پروګرام موخه دا وه چې د شمالي ویتنام واله پردې باوري شي چې په شمالي ویتنام کې نورې جاسوسي شبکې هم شته، هغو خیالي شبکو ته به مخابروي پیغامونه استول کیدل او اکمالات به ورته اچول کیدل.

پایله به دا وه چې د شمالي ویتنام څارګرې ادارې او پوځیان به د هغوی په لټون سرګردانه وو او زیات وخت او پیسې به یې لګیدلې.

*　　　*　　　*　　　*

د ۱۹٦۸ز په نیمایي کې ډګروال جان سن ګلاوب د امریکا د مرستندوی مطالعاتي او څارونکي ځواک د مشرتابه له دندې ګوښه شو. د هغه پر ځای ډګروال سټیو کیوانا وټاکل شو، هغه په جنوبي ویتنام کې د (اس او جي) عملیات کم کړل، پر ځای یې تر سرحد پورې غاړې ماموریتونه زیات کړل. په ۱۹۹٦ز کې سن ګلاوب د (هیچټ) ځواک جوړ کړی ؤ. د امریکا سفیر پر هغو بندیز لګولی ؤ چې د دوی په عملیاتو کې به د یوه ټولي نه زیات پوځیان نه وي. خو په ۱۹٦۹ز کې دغه بندیز لرې شو. او (اس او جي) دا اجازه ترلاسه کړه چې دوی د آرام سمندر د عمومي قوماندان په تائید د یوه غونډ په ظرفیت (هیچټ) ځواک جوړولای شي.

(اس او جي) په کونټم، ډانانګ او بان می ټواټ سیمو کې، دغسې څلور کنډکونه جوړ کړل. د دوی د ګومارنې او تشکیل لویه ستونزه د څرخیو کمبود ؤ، د هیچټ د هر علمیات لپاره ۱۲ څرخیو ته اړتیا وه. پردې ستونزې سربېره د هیچټ عملیاتو له امله شمالي ویتنام اړ شو چې د هوچي من د لارو د ساتنې او دفاع لپاره زیات کسان وګوماري. په ۱۹٦۹ز کې د یوه اټکل له مخې د دې ساتونکیو شمېر ۷۰ زره کسان ؤ. د دوی په پرتله د اس او جي (مطالعاتي څارونکي ځواک) ټول ټال ۵۰ کسان وو.

د ۱۹٦۷ز په جون کې یو (هیچټ ماموریت) په لاوس کې د (آسکرایټ) نومي هدف پر خلاف ترسره شو. دا د جنوبي ویتنام دننه د (آشو) درې څخه ۲۵میله شمال لویدیز لور ته یوه سیمه وه چې دلته له ۹۲۲لمبر لویې لارې څخه یوه بله ۹۲یم لمبر لاره بېله شوې ده. دا ګومان کیده چې په

## د سي آی اې پټې جګړې

دې غرنۍ سیمه کې د شمالي ویتنام د پوځ ۵۵۰یم اکمالاتي او لوژستیکي خدماتو د ګروپ مرکز دی. د امریکا د هوایي ځواک استخباراتو هم دغه معلومات ترلاسه کړي وو چې له شمالي ویتنام څخه د باندې، د دوی د پوځ تر ټولو ستره د وسلو زیرمه همدلته ده.

د څرخیو د کوزیدو زون پر ځنګلونو د پټو غونډیو په منځ کې، یوې پیالې ته ورته ځای ؤ، په دې غونډیو د الوتکو ضد، دافع هوا توپونه او ماشیندار دریدلي وو، او سمڅې یې هم جوړې کړې وې. سهار وختې لومړی B ۵۲ الوتکو پر ټوله سیمه سخته بمباري وکړه او یو زر دانې بمونه یې وغورځول، د شمالي ویتنام پوځیان ولیدل شول چې له سمڅو راووتل او د تیلو د بیلرونو له بل شوي اور نه یې د وتلو هڅې کولې.

چې بمباري ودریده هیچېټ ځواک د څرخیو په واسطه کوز کړای شو، خو له کوزیدو سره د شمالي ویتنام د عسکرو لخوا را ایسار شول، کمپنۍ ډېره تونده جګړه پیل کړه او هوایي مرسته یې وغوښته، چې له دې سره اې-ون اسکای ریډرز جیټ او څرخۍ ور ورسیدې، خو د ویتنامیانو د دافع هوا درنو ډزو تر برید لاندې راغلې.

جګړه کرۍ ورځ او شپه روانه وه، سبا سهار ته بمبارد الوتکې راورسیدې، هغو خوشه یې بمونه وغورځول، د عملیاتي ځواک د پورته کولو لپاره څرخۍ هم راغلې چې له هغو نه څلور وزره د دښمن د دافع هوا ډزو وغورځولې، په دې جګړه کې ۲۳تنه امریکایان بې درکه شول چې له هغو څخه یې ٦ تنه وروسته وژلي وبلل. پاتې کسان یې را وایستل. د یوې را غورځول شوې څرخۍ الوتکې پیلوټ جګتورن چارلس ولکلو په ټپي حالت کې ونیول شو،

## د سي آی اې پټې جګړې

راتلونکی سهار چې کله هغه را په خود شو او کیناست وې لیدل چې دوه تنه روسي سلاکاران ورته ناست دي او ده ته ګوري. په څلورمه ورځ سره له دې چې سخت ټپي ؤ. له تیارو څخه په ګټه یې په کشولو ځان ویوست، دښمن سبا ته د هغه په تښتیدو خبر شو، خو په بیا موندلو کې یې ناکام شول، د مخابروي پیغام له استولو سره یې څرخۍ ور واستوله او له هغه ځایه یې راویوست، د هغه نوم په هغو کسانو کې ؤ چې مړه یې بللي وو.

* * * *

د ۱۹٦۹ز په پیل کې یو ځانګړی ډول زړور عملیات د (سپنډوز) په نامه په لاوس کې وشول، چې موخه یې په جنوبي ویتنام کې د لاوس او کمبودیا له سرحد نه درې میله دننه د خاصو ځواکونو پر یوه مرکز د شمالي ویتنام د برید ناکامول وو.

د (بین هیت) په نامه سیمه کې د دغه اډې د ساتنې لپاره د امریکایي خاصو ځواکونو ۱۲تنه مامورین او د مونټاګنارد ۱۵۰۰تنه ګومارل شوي وو، د دوی په وړاندې د شمالي ویتنام دوو کنډکونو پرلپسې پر هغوی ډزې کولې، دې اډې ته یوازینی سرک غوڅ شوی ؤ، او ډېر شمېر دافع هوا توپونو د هوا له لارې ورته د مرستو رسول ډېر خطرناک کړي وو.

د مارچ پر ۳مه ماښام مهال دښمن د لسو ټانکونو په مرسته برید پیل کړ چې ناکام کړای شو، خو تر دې وروسته ولیدل شول چې د دښمن نور پوځیان راغلل.

د مارچ پر ۴مه د هیچټ ځواک اې کپتان بابي ایونز په مشرۍ له کونټم څخه ننوتل، هغوی سمدستې له لویې لارې ۳۰۰متره پاس خپل مرکز جوړ

کړ، د دې ماموریت موخه د ۱۱۰ لمبر لارې بندول وو چې دښمن ته مرسته ونه رسیږي، دښمن سمدستي ډزې پیل کړې خو د کلکو سمڅو په سبب کوم خاص زیان وانه وښت، د شپې لخوا دښمن هڅه وکړه چې د دوی تر شا کاروانونه تېر کړي، خو پر هغو د څرخیو او جیټ الوتکو بمبارۍ وشوې، د شپې دښمن د یوه برید هڅه هم وکړه، راتلونکې شپه دښمن یو ځل بیا د یوه کاروان د تېرولو هڅه وکړه چې په ډزو او مقابله یې مخه ونیول شوه. د هېڅ کنډک تر شپږو ورځو پورې په خپل مورچل کې پاتې شو، دوی د دښمن شپږ لارۍ له منځه یوووړې، عملیات بریالي وو او د دښمن اکمالاتي نظام ښه زیانمن شو. په ۱۹٦۹ز کې د کمبودیا سهانوک دل بندر له ختیځې اروپا څخه شمالي ویتنام ته د وسلو او اکمالاتو تر ټولوستره لاره ګرځیدلې وه. له بندر نه د وسلو بارونه د شمالي ویتنام د څارګرې اداري (ترنه سات) په لویو لویو لاریو کې له نام پنه نه د باندې یوې لویې ډیپو ته راوړل کیدل. له هغه ځایه بیا د اووم لمبر لویې لارې څخه فش هک ته تلل، او وسلې د شمالي ویتنام پینځمې او اوومې اکمالاتي فرقې او د ویت کانګ ۹مې د اکمالاتو قوې ته سپارل کیدل، دلته ډېر مرکزونه وو چې تر ټولو لوی یې د کمبودیا له سرحد نه یوازې درې میله دننه ؤ.

د امریکا استخباراتي سرچینو د کمبودیا د دغه تش په نامه بې طرفۍ په اړه زیات شواهد چمتو کړل. ریچارد نکسن د ۱۹٦۹ز په جنوري کې ولسمشر شو او له شمالي کوریا سره د سولې په خبرو بوخت ؤ. هغه ته دغه شواهد ور وښودل شول، او د ۱۹٦۹ز په فبرورۍ کې یې د کمبودیا دننه د شمالي ویتنام پر پوځي مرکزونو د (B52)الوتکو د بمبارۍ پلان جوړ

کړ، په مارچ کې ولسمشر نکسن شمالي ویتنام ته دوه ځله ګواښ وکړ چې که د مسالې د حل لپاره د سوله ایزو هڅو په بهیر کې پر امریکایي پوځ بریدونه وشول نو ځوابي عملیات به وکړي. شمالي ویتنام د دې ګواښونو پروا ونه کړه او پر سایګون یې د توغندیو برید وکړ. درې ورځې وروسته B52ستراټ فوتریش الوتکو د فش هک په سیمه کې د شمالي ویتنام پر پوځي مرکزونو بمبارۍ وکړې چې په پایله کې یې د وسلو او باروتو ډېرې زیرمې له منځه لاړې.

یوه میاشت وروسته د کمبودیا له میموت ښار نه ۱۴میله جنوب ختیځ ته د شمالي ویتنام پر اډې د بمبارۍ پرېکړه وشوه، له دې سره دا پرېکړه هم وشوه چې یو پوځ سیمې ته ننوزي او له بمبارۍ سمدستي وروسته ځمکنۍ حمله وکړي. دغه مسوولیت د سي سي اس سل کسیز هیچټ کنډک ته وسپارل شو، چې د مونټاګنارډ قبایلو څخه جوړ شو. تر دې مهال یې ډینیل بون عملیاتو ته د (سالم هاوس) نوی نوم ورکړی ؤ، ځکه چې د لومړي نامه په اړه نیوزویک یو راپور خپور کړ او هغه یې افشا کړی ؤ.

د ۱۹٦۹ز د اپریل پر ۲۴مه هیچت ځواک د څلورو څرخیو په واسطه په سیمه کې کوز کړای شو، له بمبارۍ نه څو دقیقې وروسته دغه څرخۍ د کیناستلو زون ته ورسیدې، خو سمدستي ډېرې سختې ډزې پیل شوې، د هیچټ کسان د بمونو په کندو کې له ډزو پټ شول او ځوابي ډزې یې پیل کړې، تر ټولو لومړی د خاصو ځواکونو جګتورن ارنست په ګولۍ ولګید او ووژل شو، ورپسې کپتان جیمز کاهل سخت ټپي شو، په دې موده کې له څرخیو څخه د مرستې لپاره د توغندیو ډزې پیل شوې، دغه وخت د

## د سي آی اې پټې جګړې

کنډک د دوهم ټولي لومړی بریدمن ګریګ هربګن هم ووژل شو، دغه مهال د پوځیانو د ایستلو لپاره یوه څرخۍ (هلیکوپټره) راغله، خو د سختو ډزو له لامله هغه کینستلای نه شواې، دغسې نورې هڅې هم ناکامې شوې او جګړې دوام وکړ، چې د هېچټ ځواک زیانونه پکې زیات شول، نا څاپه د استرالیا د هوایي ځواک یوه کنبرا بمبارد الوتکه راغله، دغه الوتکه د پان رنګ په هوایي ډګر کې دریدلې وه او د بیړنۍ وضعې د زنګ له اوریدو سره بیله اجازې د کمبودیا له سرحده تېره شوه او هلته راغله، د هغې بمباري اغیزمنه ثابته شوه او د څرخیو په واسطه د هېچټ پاتې کسانو د را ایستلو فرصت برابر شو. په دې عملیاتو کې د جیري شراتور په نامه یو پوځي ورک شو چې وروسته یې مړ وباله.

د هېچټ ځواک له لوري په لاوس کې تر ټولو بریالي عملیات د ۱۹۷۰ میلادي په وروستیو کې وو، سي آی اې د (هانریبل ډریګن) په نامه عملیات چې د هیواد په جنوب کې د یوې سیمې د بېرته نیولو لپاره وو، د مرستې غوښتنه وکړه، د شمالي ویتنام پوځ ډېر کلک مقاومت کاوه او په عملیاتو کې شریکو د همونګ نامنظمو ګروپونو ته ډېر سخت زیان واوښت، که دغه عملیات ناکام شوي وای نو په جنوبي لاوس کې د کمونیستانو د برلاسی مخه بیا هیڅچا نشوای نیولای.

سي آی اې له مطالعاتي څارونکي ځواک (اس او جي) وغوښتل چې په سیمه کې د شمالي ویتنام د پوځ شاتني مرکز ته چې په چاوانې کې ؤ د هېچټ ځواک یو کنډک واستوي. دغه ځای له لاوس نه له هغه حد نه شل میله وړاندې ؤ چې هېچټ ځواک له هغو څخه د تېریدو اجازه نه درلوده.

## د سي آی اې پټې جګړې

خو د دې عملیاتو لپاره په لاوس کې د امریکا سفیر له اس او جي څخه دغه بندیز لرې کړ.

د (ټېل وندړ) په نامه دغه عملیات د هیڅچا ځواک بي کندړک ته وسپارل شول، چې په کونټم کې یې قرارګاه وه، د سپتمبر پر ۱۱مه د کپتان (یو جین مکارلې) په مشرۍ د خاصو ځواکونو ۱۵منصبدران له ۱۱۰ تنو مونټاګنارډ بې نظمه پوځیانو سره، د دې ځواک په درې څرخیو کې (ډاک ټو) ته ورسیدل. له هغه ځایه د تېلو له اخیستلو وروسته څرخۍ بیا والوتې او له سرحد سره جوخت له پنځوس میله مزله وروسته د لویدیز په لور چاوانې ته ور وګرځیدل، کله چې د بولوونیس لوړو غونډیو ته ورسیدل تر سختو ډزو لاندې راغلل، یو عسکر ټپي شو، خو درې واړه څرخۍ د کوزیدو زون ته ورسیدې او ځواک یې هلته کوز کړ، چې شمال ختیځ لور ته وخوځیدل، لږ ځنډ وروسته یې د تیلفون زنګونه واوریدل، دوی هغه لور ته وړاندې ورغلل، وې لیدل چې هلته د شمالي ویتنام د پوځ د اکمالاتو یو لوی مرکز دی چې په توغندیو ډکې سمځې پکې دي. هغه یې په باروتو والوزول، وړاندې روان شول، په مخه کې د شمالي ویتنام د پوځ له یوې ډلې سره مخ شول چې په جګړه کې د دوی زیات پوځیان ټپیان شول. هغوی یې په څرخیو راوکښل، چې بیا د هیڅچا ځواک کسان هماغسې د لویدیز په لور پر مخ روان وو، پر سرونو یې د بدرګې سي ۱۳۰ سپیکټر ډوله هلیکوپترې دورې خوړې. د سپتمبر پر ۱۲مه د ځنګل په یوه ګوښه کې له یوه چاک نه دوی د ۱۲ لاریو او د شمالي ویتنام د زیات شمېر پوځیانو یو کاروان ولید چې له هغه ځایه نیم میل لرې ۱٦۵م لمبر لویې لارې په لور روان ؤ،

دوی مرکز ته خبر ورکړ او اې-ون سکای ریډرز جیټ راورسیدې بمباري یې وکړه چې لاری، پکې له منځه لاړې او د شمالي ویتنام پوځیان تیت او پرک شول.
تر دې مهاله د هیچټ ۲۰ تنه ټپیان شوي وو چې د روغتیايي مرستو لپاره یې له هغه ځایه کښلو ته اړتیا وه، په دې موخه یوه شي سټالین الوتکه هلته راغله، خو د دښمن پر ډزو یې ټانکی سوری شوه او هغه له دې ځایه ووته خو پینځه میله لرې بېرته ښکته کیدو ته اړه شوه. تر دې وروسته یوه بله څرخۍ راغله او د کیناستلو په زون کې راښکته شوه، خو د دښمن د توندو ډزو له لامله هغه هم بیرته لاړه. هغه هم په ګولیو لګیدلې وه او پینځه دقیقې وروسته کوزیدو ته مجبوره شوه.
تر دې وروسته هیچټ ځواک د ۱٦٥لمبر لویې لارې پر سر په کمرونو کې مورچل ونیو. پردې شپه پر دوی څو بریدونه وشول چې ټول یې په شا وتمبول، د سپتمبر پر ۱۳مه یې بیا پرمختګ ته دوام ورکړ. درې ساعته وروسته یې ډېرې سمڅې وموندې. پر هغو یې لومړی هوايي بمباري وکړه، بیا دوی ځمکنی برید پیل کړ، په پایله کې د شمالي ویتنام پوځ کنډکونه له سمڅو وتښتیدل، د دې سمڅو له لټولو سره دوی ته زیاته اندازه اسناد هم په لاس ورغلل.
تر دې وروسته هېچټ کندک د بېرته ستنیدو پرېکړه وکړه، هوايي مرسته یې وغوښتله او د څرخیو د کوزیدو یوه زون ته روان شول، په وروستیو شیبو کې یې دښمن ته د دوکې ورکولو لپاره د الوتکې کوزیدو ځای ته

مخه کړه، پر دښمن چې د دوی د پاسه په غونډيو کې وو بمباري روانه وه، وروسته ټول ټيم د هليکوپټرو په واسطه له هغه ځايه را وايستل شو.

دغه عمليات ډېر بريالي وو، که څه هم درې تنه مونټاګنارډ ووژل شول او ۳۳ نور ټپيان شول، په داسې حال کې چې ۱۶تنه امريکايان هم ټپيان شوي وو، دوی بيا د شمالي ويتنام د اکمالاتو، تاسيساتو او نظام ته سخت زيان واړاوه، ۴۰۰تنه پوځيان يې ور ووژل او زياته اندازه مرمۍ او باروت يې والوزول، پردې سربېره کوم اسناد چې په لاس ورغلل له هغو څخه يې ډېر قيمتي معلومات ترلاسه کړل. چې پکې د هغو وسلو او مرميو تفصيل هم ؤ چې د شمالي ويتنام پوځ ته رسيدلي وو، همدارنګه په ۴۰۰ مخونو کې يو داسې سند هم ؤ چې د ويتنام د ۵۵۹م لمبر د لوژيستيکي او ترانسپورټي خدماتو د ځواک بشپړ معلومات پکې وو.

تردې وروسته د امريکا په پاليسۍ کې د ويتنامي کيدو(ويتنامايزيشن) د پاليسۍ توکي زيات شول، چې د هغو له مخې د عملياتو مسووليت ورو ورو د جنوبي ويتنام پوځ ته ليږديده، د امريکا حکومت لارښوونه وکړه چې نور به هېڅ ځواک په لاوس کې کوم عمليات نه ترسره کوي.

(اس او جي) چې په دې ټوله موده کې له کومې ستونزې سره لاس او ګريوان وو، له هغو څخه يو دا ؤ چې د دوی له عملياتو څخه دښمن خبريدو، ځکه خو دغه بدګوماني زياته شوه چې د جنوبي ويتنام په پوځ کې په لوړه کچه د دښمن جاسوسان شته، دغه شک د ۱۹۷۰ز په پيل کې زيات شو کله چې له هنويي څخه د شمالي ويتنام پوځ ته استول شوی يو مخابروي پيغام ونيول شو، په دې پيغام کې د (اس او جي) د ځای پر ځای

کیدو او اهدافو په اړه تفصیلي معلومات وو، له دې وضعې سره د مقابلې لپاره یې د جنوبي ویتنام پوځ ته غلط معلومات ورکول پیل کړل، خو ډېره ګټه یې ونه کړه، ځکه چې کله به کوم ټیم وګومارل شو نو جاسوسانو ته د هوایي بریدونو راپوروونه لوستل آسانه وو، ځکه خو اس او جي (مطالعاتي څارونکی ځواک) د بېلې لارې په غوره کولو غور پیل کړ.

د ۱۹۷۰ز د اپریل پر ۲۹مه د جنوبي ویتنام ۱۲زره کسیز پوځ د امریکایي سلاکارانو په ملتیا د کمبودیا له سرحده تېر شو، د (پیرټس بیک) پر سیمه یې برید وکړ. دوې ورځې وروسته د می پر لومړۍ امریکایي پوځ هم په کمبودیا کې پرمختګ پیل کړ. د دوی هدف د شمالي ویتنام د پوځیانو او ویت کانګ پناه ځایونه وو. لومړی امریکایي او د جنوبي ویتنام ځواکونو پر(فش هک)برید وکړ چې هلته د دښمن اوه زره تنه پوځیان وو، د پلیکو په جنوب لویدیز کې د امریکا د څلورمې لیوا پلیو ځواکونو د شمالي ویتنام د یوه عصري روغتون درک ولګاوه، هلته یې پینځه سوه ټنه وریژې هم تر لاسه کړې، د می پر اوومه په کمبودیا کې د شمالي ویتنام پوځ د تر ټولو ستر مرکز هم د امریکایانو په لاس کې ولوید، له هغه ځایه ۱۴۸۴میله وسلې، ۱۵لکه مرمۍ، د باروتو ۲۲ صندوقونه او ۳۰ ټنه وریژې لاس ته ورغلل. د می پر اتمه یوه د وسلو ډیپو هم ونیول شوه، او یوه لویه اکمالاتي ډیپو چې پر ۱۴مه لویه لاره پرته وه امریکایي ځواکونو ونیوله.

په دې موده کې B52 الوتکو د شمالي ویتنام پوځیان لټول، څو اونۍ وړاندې د یوې سیمې په اړه دوی ته یو خبر رسیدلی ؤ چې دلته د هغوی مرکز دی، ځکه خو دوی له دې سیمې نه د تیښتې پر لارو او د میموټ په

شمال لویدیز کې پروت کمپ بمباري وکړه، چې د دښمن ۱۰۱تنه پکې ووژل شول.

پر کمبودیا د برید پر سر په ټوله امریکا کې مخالفتونه وشول، تر دې چې نکسن له هغه ځایه بېرته د پوځونو ایستلو حکم وکړ، ځکه خو له کمبودیا نه د جون تر دیرشمې ټول پوځیان ووتل. په دې سیمه کې چې کوم عملیات ترسره شول په پایله کې ۲۳زره سالټ ټوپک او ماشیندار، ۲۵۰۰میله ماشیندار او داشکې ٦۲زره لاسي بمونه، ۱۵لکه ډول ډول مرمۍ، یو لک ۴۳زره د هاوان مرمۍ، ۷۹زره ټنه وریژې لاس ته ورغلل، پردې سربېره ۴۳۵عرادې موټر له منځه یوړل شول او یا ونیول شول. د امریکا او جنوبي ویتنام ۱۰۸۴ تنه پوځیان ووژل شول ۵۷۴۹ تنه ټپیان او ۱۳تنه ورک شول. د شمالي ویتنام او ویتکانګ ۱۱۳۴۹ تنه پوځیان ووژل شول. او ۲۳۲۸ تنه یې ونیول شول.

خو د دښمن زیات شمېر پوځیان په تېښته بریالي شول او ۸۰میله لرې واوښتل، چې په کمبودیا کې د امریکایي پوځ د عملیاتو لپاره په دغه ساحه کې دننه ټاکل شوې وه، دوی نور هم دننه لاړل او د لاوس دننه یې نوي مرکزونه جوړ کړل.

د ۱۹۷۰ په جون کې د ډګروال ستېیوکیوان پر ځای د امریکایي ځواکونو د اس او جي قومانده ډګروال جان سیډلر ته وسپارل شوه، هغه په ۱۹۵۸ز کې له خطر سره د مقابلې او له لوړې ارتفاع څخه په پاراشوټو کې د ښکته کیدو مهارتونه ترلاسه کړي وو.

د قوماندې له ترلاسه کولو او د (اس او جي) په وړاندې، د عملیاتي خطرونو په اړه له معلوماتو وروسته هغه د عملیاتي ټیمونو استولو په لړ کې د خپلو زده کړیو اصولو د پلي کولو پرېکړه وکړه، د فلوریډا په نامه یې یو شپږ کسیز ټیم جوړ کړ، چې په هغو کې بریدمن کلف نیومن، بریدمن سیمي هرناندیز او میلون هیل، د جنوبي ویتنام د پوځ یو منصبدار او دوه د مونټاګنارډ قبایلي پوځیان شامل وو، دوی یې د تن پر تن جګړې او خطر سره د مقابلې د زده کړو لپاره او کیناوا ته واستول. په بېرته راستنیدو کې یې ازموینه ترې واخیسته، چې بیا یې دوی مسلکي کوماندو وګڼل.
دغه ټیم یې د نومبر په ۲۸مه، د شپې په یوه بلیک برډ الوتکه کې په یوه فرعي میدان کې راکوز کړ چې کلکه ساتنه یې کیدله، راتلونکې څلور ورځې دې ټیم د تیلفون د مزي په موندلو تېرې کړې، په پینځمه ورځ یې په څرخۍ کې پورته کړل او د تایلند په ختیځ کې یې ناګون فانوم مقام ته ورسول، له هغه ځایه دوی جنوبي ویتنام ته راغلل، دا د نړۍ په کچه لومړني (له لوړې ارتفاع څخه د پاراشوټو په وسیله د راکوزیدو) عملیات وو.
په ۱۹۷۱ز کې یې څلورو امریکایانو ته دغه روزنه ورکړه، چې په مې میاشت کې یې د شاو په دره او د کهې سنه سیمې ترمنځ عملیات وکړل، له کوزیدو سره د دوی یوتن هغه مهال ټپي شو چې په خپل جیب کې پراته باروت یې وچاودیدل، بل تن یې د کوزیدو پر مهال ټپي شو، دوی دواړه یې له هغه ځایه راوکښل، خو نورو یې خپل جاسوسي ماموریت پایته ورساوه او پینځمه ورځ بېرته راستانه شول. یو درېیم ټیم چې څلور غړي یې امریکایان وو، د روزنې له تېرولو وروسته د لاوس سرحد ته نږدې له ډانانګ

 څخه ۶۰ میله جنوب لویدیز ته، په یوه سیمه کې راکوز کړای شول. هلته د معلوماتو له مخې د شمالي ویتنام ښه زیات پوځ ځای پر ځای ؤ. د جون پر ۲۲مه د شپې دغه ټیم له کوزیدو سره تیت شول. بریدمن بات او بریدمن سټرولهن له کوزیدو سره ټپیان شول، په سیمه کې د شمالي ویتنام پوځ موجود ؤ، زر تر زره یې د ټیم د راپورته کولو لپاره(برائټ لایټ) عملیات وکړل. سټرولهن څرخۍ ته د خپل موقعیت د ښودلو لپاره د لوخړې بم وکاراوه، خو څرخۍ یوازې جګتورن جیسي کیمپ بېل او تورن بلي وا راپورته کړای شول. ځکه دغه مهال ماښام شوی ؤ، سبا ماسپښین څرخۍ د هغوی دواړو راپورته کولو لپاره بیا ورغله، بات یې وموند خو د سټرولهن هیڅ درک معلوم نه شو، هغه د شمالي ویتنام پوځیانو ژوندي نیولی ؤ.

څلورم (ایچ اې ایل کیو) له لوړې ارتفاع څخه د پاراشوټ په واسطه راکوزیدو عملیات تر ټولو بریالي وو. د کپتان جم سټوارټر په مشرۍ یو څلور کسیز ټیم د سپتمبر په پیل کې د پلیکو په شمال لویدیز کې په(پلي ټراپ) دره کې پلي کړای شول، راتلونکي څلور ورځې ټیم د درې ارزونه وکړه، پینځمه ورځ یې بېرته راپورته کړل.

وروستی دغه ماموریت یوه میاشت وروسته ترسره شو، یو څلور کسیز ټیم له پلیکو څخه ۲۵میله جنوب لویدیز ته د کمبودیا د سرحد دننه په ایاډانګ دره کې کوز کړای شول. راتلونکې ورځ دوی د شمالي ویتنام له یوه وسله وال ګروپ سره مخامخ شول چې دوی په ډزو هغوی ټول ووژل، دوه ساعته وروسته یې ټیم بېرته راو ایستلو.

پر کمبوډیا له برید وروسته، امریکا له جنوبي ویتنام نه د خپلو پوځونو ایستل چټک کړل. هغوی یوازې د لویو ښارونو په ساتنه کې بوخت شول، امریکایي پوځ د ویتنام د منځنیو جګو سیمو، غیر پوځي سیمو او د جنوبي ویتنام سره تړلیو سیمو څخه ووتل او پریښي ځایونه یې د جنوبي ویتنام پوځونو ونیول، خو هغوی د شمالي ویتنام د پوځونو د پرمختګ مخه نشوای نیولی، چې ډېر زر هغه یادو سیمو ته ننوتل، او د اکمالاتي لارو لیکې یې له لاوس نه تر ویتنام پورې وغځولې.

د ۱۹۷۱ز د جنوري پر ۲۱مه د پینځم خاص ځواک ګروپ(هوایي کوماندو) له جنوبي ویتنام نه تر وتلو لږ وړاندې خپله وروستۍ اډه هم د جنوبي ویتنام خاص ځواک ته وسپارله، د دوی له وتلو وروسته د مطالعاتي څارونکي ځواک، عملیاتي او مشورتي ځواکونه چې د امریکا د خاصو ځواکونو څخه وو، د خپلو مرکزونو د ساتنې په دنده وګومارل شول.

مطالعاتي څارونکي ځواک تر فبروري پورې لاوس ته ټیمونه استول، خو د فبرورۍ پر ٦مه د اس او جي مشر ته حکم وشو چې په لاوس کې خپل ټول عملیات ختم کړي، د دې پر ځای یې د دوی د فعالیت لپاره د لاوس د سرحد او غیر پوځي سیمې کې شپږ میله ژوره ساحه ور په نښه کړه، دغه مهال ان اې ډې (سمندري چټک ځواک) بیا فعال شوه د فبروري پر ۱۹مه یې څلورو کیښتیو د شمالي ویتنام یوه برید کوونکې بیړۍ ویجاړه کړه او دوو نورو ته یې زیان ورساوه.

د مطالعاتي څارونکي ځواک عملیات د ۱۹۷۱تر مني پورې دوام درلود. وروستي عملیات د ۱۹۷۱ز په دسمبر کې د اشاو په دره وشول، هلته د دوی

ټیم د دښمن د ټانکونو او زغره والو موټرو ځای معلوم کړ او د هوايي برید په ترڅ کې یې هغه له منځه یووړل.

د ۱۹۷۲ز په مارچ کې یې، ایم اې سي وي مطالعاتي مشورتي ګروپ ړنګ کړ.

د دوی ماموریت له دې درکه ډېر بریالی ؤ چې، د دوی په سبب په لویه کچه د شمالي ویتنام پوځ د دې پر ځای چې په جنوبي ویتنام کې عملیات ترسره کړي، په لاوس او کمبودیا کې په دفاعي عملیاتو بوخت پاتې شول.

د یوه اټکل له مخې د دوی هر مامور د شمالي ویتنام ۶۰۰تنه پوځیان له کاره غورځولي وو، د دوی هیچټ ګروپونو د دښمن زیاته اندازه وسلې او وسایل له منځه یووړل او په جنوبي ویتنام کې یې د دوی د عملیاتو توان له منځه یووړ، پردې سربېره اس او جي (مطالعاتي څارنکی ځواک) پخپله او د هوايي مرستو په سبب په لاوس او کمبودیا کې په زرګونو ویتنامیان عسکر ووژل چې غوښتل یې جنوبي ویتنام ته ننوزي او د امریکایي او جنوبي ویتنام د پوځونو پر خلاف وجنګیږي.

د دوی رواني جګړه هم اغیزمنه وه، چې له امله یې د شمالي ویتنام پوځ ډېر وسایل د هغو د اغیز ماتولو لپاره په کار واچول.

خو د دوی د اوږد مهاله جاسوسانو استولو پروګرام بریالی نه ؤ چې په هغو کې د شمالي ویتنام جاسوسانو له پیله نفوذ کړی ؤ، همدغسې د اس او جي د جاسوسو ټیمونو معامله هم ده چې د دوی مخبري به په سایګون کې ناست یوه یا څو کسانو کوله، کله چې دا څرګنده شوه استول شوي ټیمونه د شمالي ویتنام د پوځیانو تر فشار لاندې کار کوي. نو اس او جي له هغوی

## د سي آی اې پټې جګړې

سره اړیکې وساتلې او هڅه یې کوله چې په دوکه کې هغوی وساتي او خپل کار پرمخ بوزي. د دې پایله دا شوه چې د شمالي ویتنام جاسوسانو به خیالي جاسوسان لټول او پردې به ستومانه وو.

په ۱۹۷۳ز کې د امریکا د لومړي ځل لپاره دا ومنله چې د دوی پوځیان په لاوس او کمبودیا کې له ۱۹٦۵ز راپه دې خوا په عملیاتو کې وژل کیږي. په رسمي ډول د وژل شویو شمېر ۸۱تنه وښودل شو، خو په حقیقت کې د دوی تر درې سوه تنو زیات جاسوسي مامورین ووژل شول.

(د ویتنام په جګړو کې د امریکا ۵۸ زره پوځیان وژل شوي چې د دې اثر په راتلونکي څېرکي کې امریکایي چارواکیو پرې اعتراف کړی او دوی یې په افغانستان کې له پخواني شوروي څخه کسات واخیست. ژباړن)

# ( ۲ )

# افغانستان

# له ۱۹۷۹-۲۰۰۱ز پورې

د ۱۹۷۹ز د دسمبر ۲۴مه شپه د افغانستان له پلازمېنې څخه د باندې، په هوايي ډګر کې د شوروي اتحاد د ډېرو زياتو الوتکو راښکته کيدل پيل شول. د کابل شمال ته په ۴۰ ميلۍ کې د بګرام پر هوايي ډګر ۱۰۵يمه د شوروي ځواکونو کوماندو او پاراشوټي قوا راکوزيدله چې په هغو کې د ۱۰۳يمې او ۱۰۴مې فرقې دوه غونډونه هم وو، همدغه ننداره په ختيځ کې د جلال آباد او په لويديز کې د شينډنډ په هوايي ډګرونو کې هم تکراريدله. د دسمبر د ۲۷مې تر ماښام پورې ۵زره تنه دغه ځواکونه کابل ته ننوتلي وو، په دې موده کې دوه موتوريزه ۳۵۷يمې او ٦٦مې قواوې(لواوې) د ترکمنستان په سرحد کې د کشکا له بندر نه د هرات او بيا د شينډنډ، فراه او کندهار په لور وخوځيدې او بيا يې هغه ټول ښارونه ونيول، په همدې وخت کې ۳٦۰مه لوا له ازبکستانه افغانستان ته ننوتله او

د ترمذ له بندره تېره شوه، د مزار شریف له لارې د سالنګ په لور راغله او د دسمبر پر ۲٦مه کابل ته راورسیده.

په شمال ختیځ کې ۲۰۱یمې او ١٦مې موتوریزه قواؤ بغلان، بدخشان او کندز ونیول، د مرکز د ۴۰ مې فرقې جنرال ولاډلین ایم میخایلوف چې په ترکمنستان کې د شوروي ځواکونو قوماندان ؤ، بګرام ته راغی او په افغانستان کې د شوروي پوځونو عمومي قوماندان شو.

د دسمبر پر ۲۷مه ماښام، شوروي کوماندو ځواکونه له بګرام نه راغلل، د پلازمینې مخابراتي سیستم، کورنیو چارو وزارت او کابل راډیو یې ونیول، دوی په ټول ښار کې د وزارتونو او نورو مهمو ځایونو شاوخوا ته سنګرونه ونیول.

ولسمشر حفیظ الله امین په دارلامان ماڼۍ کې ؤ، کله چې د روسیې خاص ځواکونه هلته ورغلل د افغان ځواکونو او روسي قواوو ترمنځ سخته نښته راغله، له روسي ځواکونو سره د کا جي بي کسان هم وو، چې قومانده یې د خاصو ځواکونو د افسر ډګروال بویارینوف پر غاړه وه.

د روسي ځواکونو قومانده د تورنجنرال وکتور پاپوټین پر اوږو وه، دې ګروپونو دارلامان ماڼۍ ونیوه، د کا جي بي ګروپ دنده د حفیظ الله امین وژل وو، کله چې دغه ډلې د ماڼۍ په لور ورغلې افغان ساتونکیو ماڼۍ ته د ننوتلو اجازه ورنکړه، چې هغوی بیا په ډزو ووژل، دوی په زغره والو موټرو کې سپاره وو، هڅه یې وکړه چې دروازه پر موټر ووهي او ننوزي، خو دروازه کلکه وه ماته نه شوه، روسي کوماندویانو سمدستي شاوخوا ته افغان پوځیان ووژل.

بيا د کا جي بي ټيم د ماڼۍ په لور را وړاندې شو، د ماڼۍ دننه نقشه دوی ته د کا جي بي يوه مامور ميخائيل طالبوف چمتو کړې وه، د منځنۍ آسيا اوسيدونکی طالبوف د کا جي بي د بهرنيو استخباراتو د څانګې يو افسر ؤ چې د وژنو، خاصو عملياتو او دې ته ورته فعاليتونو تجربه يې درلوده. نوموړی په سپټمبر کې د ډوډۍ پخوونکي په بڼه دلته راغلی ؤ تر څو امين په زهر ووژني. هغه دوه ځله هڅه کړې وه خو بريالی نه شو. چې وروسته يې د ماڼۍ دننه نقشه او د امين د کړو وړو او معمولو فعاليتونو په باب راپورونه استول پيل کړل.

بوياريڼوف او د هغه ګروپ چې کله دارلامان ماڼۍ ته ننوتل نو د ننه د امين د ساتونکيو له سخت مقاومت سره مخ شول. په دې کې يې زيات شمېر کسان ووژل شول خو د لومړي پوړ تر زينو لاندې ورسيدل، هلته د امين ساتونکی ټيم چې د کا جي بي روزل شوي کسان وو له دوی سره سخت کيوتل، بوياريڼوف له دې وېرې چې ډلې يې ماتې نشي د نورې مرستې لپاره راوګرځيدو خو دا يې هير شوي وو چې خپلو ځواکونو ته يې په دروازه کې امر کړی ؤ چې هر څوک له ماڼۍ راووزي نو ويې وژني، ځکه خو چې له ماڼۍ راووت خپلو کسانو يې وواژه.

بالاخره له توندې جګړې وروسته تورنجنرال وکتور پاپوټين هم ووژل شو، خو ماڼۍ روسي ځواکونو ونيوه، حفيظ الله امين يې ونيو او ويې واژه، له ده سره د ده خدمتګاران او د کورنۍ غړي هم ټول ووژل شول.

په دې شپه د کابل خلکو په پام کم نهو بجو د خلق ديموکراتيک ګوند د پرچم ډلې د مشر ببرک کارمل وينا واوريده چې د کابل په څپو له تاشکند

راديو څخه خپره شوه. په دې وينا کې نوموړي اعلان وکړ چې حفيظ الله امين ته د انقلابي محکمې له خوا د مرګ سزا ورکړای شوه، او ده د هيواد واک په لاس کې اخيستی دی، او شوروي اتحاد د ده د پوځي مرستې غوښتنه منلې ده. په دې بهير کې روسي پوځونه د افغان پوځ له مقاومت سره مخ وو، کابل ته نږدې د قرغې اتمې فرقې سخت مقاومت وکړ، همدارنګه په کندهار کې ۱۵مې فرقې سخته مقابله وکړه، په هرات او جلال آباد کې هم توندې او اوږدې جګړې وشوې، په نورو برخو کې پخوا تر دې چې افغان پوځونه وخوځيږي، روسي پوځونو هغوی فلج او بې وسلې کړل، تر دې وړاندې چې افغان هوايي ځواک کوم اقدام وکړي ټول هوايي ډګرونه روسي ځواکونو ونيول. په کابل کې هم تر درې ورځو پورې جګړه روانه وه. که څه هم د دې ټول مقاومت ماتولو څو اونۍوخت ونيو، د ۱۹۸۰ په مارچ کې روسي پوځونو پر کابل او نورو مهمو ښارونو بشپړ واک ترلاسه کړ او خپل لاسپوڅی حکومت يې جوړ کړ. تر دې مهاله روسان پردې خبر نه وو چې دوی ايله اوس داسې جګړې ته ورننوتلي دي چې تر نهو کلونو پورې به دوام کوي.

افغانستان په وچه کې ايسار هيواد دی چې شمال ته يې ازبکستان، تاجکستان او ترکمنستان پراته دي، لويديځ ته يې ايران او ختيځ ته يې پاکستان دی.

له شمال نه جنوب ته ٦٠٠ ميله او له ختيځ نه لويديځ ته اته سوه ميله اوږد پروت دی. دغه هيواد په درې لويو برخو ويشلی، شمال ته هواره سطحه

**چې د دې هیواد کرنیزه سیمه ده او شمالي برید یې ډېره برخه د آمو سیند دی.**

**مرکزي لوړې سطحې چې د هیمالیا د غرونو لړۍ(هندوکش غرونه) دي، او جنوب لویدیځ جګې او نیمه سارایي سطحې چې ریګستان نومې دښته هم پکې شامله ده.**

**د منځنۍ غرنۍ سیمې له شمال ختیځ څخه ۷۱۵ میله اوږد د هلمند سیند جنوب لویدیځ لور ته له پاسه مخ پر ځوږ بهیږي.**

**د افغانستان تر نیمایي زیاته برخه نفوس پښتانه دي، چې ډېری برخه یې په جنوب او ختیځ سیمو کې اوسیږي، نور قومونه تاجک دي چې په شمال او لویدیځ کې اوسیږي، ازبک دي چې د هندوکش په شمال کې زیاتره په کرنه بوخت دي، او هزاره دي چې په مرکزي سیمو کې اوسیږي او کډوالو ته ورته ژوند لري.**

**د افغانستان په سلو کې اتیا نفوس کلیوالي ژوند لري او ډېر یې د سیندونو پر غاړو ژوند کوي، پاتې نور پینځمه برخه کډوال او کوچي دي، په ختیځ کې پر پلازمېنه کابل سربېره له لویو ښارونو څخه هرات، کندهار، مزارشریف، جلال آباد، خوست او کندز دي، دوی زیاتره د حلقوي لویې لارې په بهیر کې آباد دي، چې له کابل نه د جنوب لویدیز کندهار او له هغه ځایه شمال لویدیز، هرات ته تیریږي او له هراته شمال ختیځ، مزارشریف ته تیریږي او بېرته د جنوب(کابل) لور ته راځي.**

**افغانستان په پیل کې د ایراني امپراتورۍ برخه وه. (افغان مؤرخین دا د ایران ادعا ګڼي او د تاریخي شواهدو پر بنسټ دوی ادعا کوي چې په ټولو**

تاریخي پېرونو کې چې کوم وخت اوسني هیوادونه په یوه امپراتورۍ کې شامل وو مرکزیت او پلازمینه یې زیاتره کابل، بلخ، هرات، غزني او یا بل داسې مقام پاتې شوی چې د اوسني افغانستان برخه دي، ځکه خو دغه نظر سهي نه دی چې افغانستان یو وخت د ایران برخه ؤ، او یا افغانستان یو وخت د هندوستان برخه ؤ. د تاریخي شواهدو د اصل له مخې دغسې ادعا هغه هیواد کولای شي چې تاریخي مرکزونه اوس هم د دوی برخه وي د لرغوني آریانا تاریخي ښارونه، بلخ، هرات، مرو، غزنی، جلال آباد، او... ټول په اوسني افغانستان کې دي. ژباړن)

له میلاد څخه وړاندې په څلورمه پیړۍ کې لوی سکندر پر افغانستان یرغل وکړ، وروسته دغه هیواد د شمالي هند د موریایي امپراتورۍ برخه شو. له میلاد څخه دوه پیړۍ وړاندې د کوشاني پاچا کنشکا د پاچاهۍ برخه ؤ. پر ۱۲۱۹ز کې د چنګیز مغلي لښکر پرې یرغل وکړ، چې د هغه حکومت د ده د امپراتورۍ تر زواله پرې حاکم ؤ، تر هغه وروسته افغانستان په بېلابېلو آزادو ریاستونو وویشل شو. تر دې چې د اتمې پیړۍ په پیل کې د هند مغلي امپراتوري پرې واکمنه شوه. د اتلسمې میلادي پیړۍ په پیل کې ایراني نادرشاه (نادر افشار) له مغلو څخه ونیو، چې بیا د هغه ځایناستي احمدشاه(دوراني احمد شاه بابا) د یوه قوم په توګه سره یو موټی کړ. په ۱۷۷۲م، کې د ده له وفات وروسته خپلمنځي نښتو او د برتانیې او روسیې استعماري ادارو، افغانستان بیا له ګډوډیو سره مخ کړ، روسیې هڅه کوله چې د افغانستان شمال سیمې له خپلې خاورې سره یو ځای کړي.

## د سي آی اې پټې جګړې

په نولسمه پیړۍ کې برتانیه د افغانستان د نیولو په هڅو بریالی نشوه، خو په بلوچستان او د افغانستان د پښتنو یوه زیاته برخه سیمه یې ترې وشکوله، په ۱۸۹۳ز کې برتانویانو د ډیورنډ کرښې په نامه یوه کرښه و ایستله، په لومړنۍ نړیواله جګړه کې چې د عبدالرحمن خان د زوی حبیب الله خان پر مهال وه، افغانستان بې طرفه پاتې شو. د جرمني او د هغو د متحدینو فشار ته یې سرټیټ نه کړ او په جګړه کې یې خپله بې طرفي وساتله، خو په ۱۹۱۹م کې حبیب الله خان ووژل شو، بیا یې درېیم زوی امان الله خان پاچا شو، هغه سمدستي د هیواد خپلواکي اعلان کړه او له برتانیې سره یې جګړه وکړه، تر یوې میاشتې پورې روانه دغه نیمګړې جګړه، د دې سبب شوه چې افغانستان خپله خپلواکي ترلاسه کړي، تر دې وروسته امان الله خان د روسیې د بلشویک له کمونستي رژیم سره د مرستې تړون وکړ. چې په پایله کې یې د دواړو هیوادونو په منځ کې اویا کاله دوستانه اړیکې ټینګې وې.

په راتلونکیو لسو کلونو کې امان الله خان ډېر اصلاحات راوستل، د ښځو د پردې غورځولو او د نارینه او نجونو د ګډ تعلیم نظام له امله سنتپال مذهبي مشران او ملایان وپاریدل، د ۱۹۲۸ په نومبر کې د یوه تاجک سقاو د زوی په مشرۍ بغاوت وشو، دوې میاشتې وروسته امان الله پاچاهي خپل ورور عنایت الله ته پرېښوده او له تخته لاس پر سر شو. په ایټالیا کې یې پناه واخیسته.

تخت د سقاو زوی ونیو او د حبیب الله په نامه یې پاچاهي پیل کړه، خو لس میاشتې وروسته محمد نادرخان هغه ووژاه او کابل یې ونیو، د نادرشاه

په نامه يې حکومت پيل کړ. په ۱۹۳۱م کې هغه د مذهبي مشرانو د ډلې لپاره نوی اساسي قانون جوړ کړ.

د ۱۹۳۳ز په نومبر کې نادرشاه هم ووژل شو، پر ځای يې زوی محمد ظاهرشاه کيناست، راتلونکي شل کاله موده افغانستان دننه پرمختګ وکړ، او په بهر کې يې له نړۍ سره اړيکې ټينګې کړې، په ۱۹۵۳کې د پاچا د کاکا زوی تورنجنرال محمد داوود خان د صدراعظم په توګه غوره شو. نوموړی يو زړور ولسپال سړی ؤ او د پښتونستان د آزادۍ سخت پلوي ؤ، دا هغه سيمې وې چې برتانيې په ۱۹۴۷ز کې د هند او پاکستان د بيلتون پر مهال پاکستان ته ورکړې وې.

داؤد د اقتصادي او پوځي مرستو لپاره روسيې ته مخ واړاوه، له ۱۹٦۵ز وروسته د شوروي واکمنو چې د ۱۹۱۷ز له انقلاب وروسته پر افغانستان سترګې ګنډلې وې، د افغان پوځ او پيلوټانو په روزنه يې لاس پورې کړ. وروسته يې په افغانستان کې د لويو تاسيستاتو جوړولو ته لاس واچاوه. چې په هغو کې د تاجک-افغان له سرحده تر کابله د لويې لارې او آمو سيند پر غاړه د بندر جوړول هم شامل وو، دغه مهال داود خان اوږد مهاله اقتصادي پروژې پيل کړې، له دې سره هغه په سياسي اړخ کې د يوه جابرانه حکومت بنسټ کېښود چې د اپوزيسيون ځای پکې نه ؤ، خو د پښتونستان مساله د ده د زوال سبب شوه چې ډېره توده يې عنوان کړې وه. د دې په پايله کې د ۱۹٦۱ز په اګسټ کې پاکستان خپل سرحد وتاړه، چې له امله يې افغانستان د ترانزيټ او سوداګرۍ لارو لپاره پر شوروي اتحاد انحصار ته اړ شو.

## د سي آی اې پټې جګړې

داؤد په ۱۹۶۳ز مارچ کې استعفا ورکړه او دوې میاشتې وروسته پاکستان بېرته خپل سرحد پرانیست.

تر دې مهاله شوروي اتحاد په افغان پوځ کې ښه نفوذ کړی ؤ، دغه کار د شوروي اتحاد د مرکزي استخباراتو ادارې تر څارنې لاندې کیدو، دې ادارې افغان پوځیان دې ته وهڅول چې یو تر ځمکه لاندې سازمان (د پوځي ځواکونو د سازمان) په نامه جوړ کړي.

په دې موده کې ظاهرشاه نوی اساسي قانون نافذ کړ، چې له مخې یې د لومړي ځل لپاره د ملي شورا انتخابات د ۱۹۶۵ په اګسټ کې ترسره شول. په دې کې ډېرو ګوندونو برخه واخیستله. په هغو کې له اسلامي بنسټپالو نیولې تر سرسختو کیڼ اړخو ګوندونو پورې ټول شامل وو چې د ملي شورا دواړو جرګو(ولسي جرګې او مشرانو جرګې) ته یې کسان ودریدل.

د انتخاباتو پر مهال پخواني شوروي، د خلق او پرچم کمونیستي ډلو د سره یو ځای کولو هڅې وکړې. له دې سره یې له (پي ډي پي اې) نوي جوړ شوي ګوند سره هم مرسته وکړه چې د کابل له پینځو کرسیو څخه یې درې دوی وګټلې.

سیاسي وضعه ډېره ګړندی د ټکر لور ته روانه وه. ظاهرشاه د ۱۹۶۵ز له سپټمبر څخه د ۱۹۷۲ز تر دسمبر پورې، یو پر بل پسې پینځه تنه صدراعظمان وټاکل، د سیاسي ګوندونو او د ښاروالیو او ولایتي شوراګانو د ادارې لپاره د قوانینو د نفاذ، د انکار له لامله سیاسي آزادۍ فلج شوې، پردې سربېره د پاکستان دننه پر پښتنو او بلوچو د ظلمونو په باب د غبرګون نه ښودلو، د وچکالۍ په موده کې له ایران سره د اوبو تړون، چې ایران ته

## د سي آی اې پټې جګړې

يې اوبه ورکولې، ناوړه پرېکړې وې چې حکومت په عامه کچه خپل محبوبيت وبايله. په دغسې وضعه کې د ۱۹۷۳ز په جولای کې د سپينې کودتا له لارې د پاچا تخت رانسکور کړای شو او سردار داؤد د پرچم ډلې او کينې اړخو پوځيانو په مرسته واک ترلاسه کړ.

داؤد د ۱۹٦۴ز اساسي قانون لغوه کړ، جمهوري نظام يې اعلان کړ او ځان يې د دولت رئيس او صدراعظم اعلان کړ. له ببرک کارمل سره يې چې هغه پخوا له مسکو نه اجازه اخيستې وه ګډ حکومت جوړ کړ، د خلق ګوند چې مشري يې نور محمد تره کي او حفيظ الله امين کوله، د سردار داؤد تګلاره ډېره سنتي وبلله، رد يې کړه او له حکومت سره يې له همکارۍ ډډه وکړه. په حکومت کې د کمونستانو په تېره د کارمل ډلې د مخ پر زياتيدونکي نفوذ څخه، له افغانستان نه د باندې په تېره له ايران سره ډېره اندېښنه وه، ايران په ۱۹۷۴کې د امريکا په مرسته دا هڅه کړې وه چې افغانستان په لويديز اقتصادي بلاک کې شامل شي، په دې بلاک کې پاکستان، هند او خليجي هيوادونه هم شامل وو، له همدې لامله افغانستان ته د ۴۰ مليون ډالرو پور ورکولو وړانديز وشو. چې دا د دوه مليارد ډالره اقتصادي پروګرام برخه وه چې په لسو کلونو کې به افغانستان ته ورکول کيدل. د پلان له مخې به افغانستان له خليجي هيوادونو سره د لويو لارو او ريل کرښې په واسطه نښلول کيدو، او ايران به د لوی مرستندوی په توګه په افغانستان کې د شوروي اتحاد ځای نيولو.

سي آی اې او د ايران ساواک د پاکستان، هند او چين او د منځني ختيځ د نورو څارګرو ادارو په مرسته په افغانستان کې د کاجي بي پر خلاف

## د سي آی اې پټې جګړې

فعالیت کاوه، پردې سربېره سي آی اې او ساواک د ۱۹۷۳ز په سپتمبر او د سمبر کې او بیا د ۱۹۷۴ز په جون کې د اسلامي بنسټپالو له لوري د داؤد پر خلاف په کودتا کې هم لاس درلود.

د ایران او امریکا د هڅو په پایله کې داود نور هم ښي اړخي، د ایران په مشرۍ لویدیز پال بلاک ته ورنږدې شو، د ۱۹۷۴ز په جولای کې هغه له پوځ څخه ۲۰۰تنه افسران چې په روسیه کې روزل شوي وو لرې کړل. راتلونکی کال یې د کمونیست دفاع وزیر پر ځای د کمونیستانو یو سرسخت مخالف قدیر نورستانی د دفاع وزیر وټاکه، د ۱۹۷۵ز په اکتوبر کې یې ۴۰ تنه نور روسي پلوه افسران برطرف کړل. پر شوروي اتحاد د انحصار د کمولو لپاره یې په هند، مصر او امریکا کې د پوځیانو د روزنې زمینه برابره کړه.

په نومبر کې داوود خان هڅه وکړه چې د پښتونستان په اړه خپلې تګلارې نرمې کړي. اعلان یې وکړ چې د پاکستان پر خلاف به نور هغه لس زره تنو بلوڅو او پښتنو چریکانو ته، پناه نه ورکوي چې د پاکستان پر خلاف فعالیت کوي.

له پاکستان نه تښتیدلیو مهاجرو ته یې په افغانستان کې له پناه ورکولو ډډه وکړه. تر دې سمدستي وروسته یې له پرچم ډلې سره د اړیکو شلولو اعلان وکړ، او خپل ګوند یې د (ملي غورځنګ) په نامه اعلان کړ، له همدې لامله شوروي اتحاد مایوس شو او په راتلونکیو اتلسو میاشتو کې یې پر کمونستي خلق او پرچم ډلو فشار راوړ چې اختلافات له منځه یوسي او سره یو موټی شي.

## د سي آی اې پټې جګړې

که څه هم د ۱۹۷۷ز په می کې شوروي اتحاد پردې بريالی شو چې دواړه ډلې سره يو ځای کړي، خو پر نورو اختلافاتو سربېره يو بنسټيز اختلاف دا ؤ چې په پرچم ډله کې زياتره ښاري د لوړې کچې خلک وو چې له پښتنو قبيلوي معاملو سره بلد نه وو، په دوی کې دري ژبي زيات وو. د خلق ډلې غړي بيا د اطرافو کليوالي خلک وو او زياتره پښتانه وو، هغوی د دې کلک پلويان وو چې خپلې هغه سيمې بېرته له پاکستان نه واخلي چې په ۱۹۴۷ز کې برتانيې هغوی ته ورکړې وې.

د ۱۹۷۷ز په بهير کې سردارداود له شوروي اتحاد سره د اړيکو شلولو پروسه ګړندۍ کړه، د فبروري په مياشت کې د کمونستانو پر خلاف اقدامات ګړندي شول، دوې مياشتې وروسته د مسکو په رسمي سفر کې د داود خان او روسي ولسمشر ليونيدبريژنف ترمنځ په خبرو کې ناندرۍ ووهل شوې، بريژنف له افغانستان نه د امريکايي سلاکارانو د ايستلو غوښتنه وکړه، داود په ځواب کې ورته وويل چې هيوادوال يې پخپلو چارو کې د شوروي اتحاد د لاسوهنې اجازه هېڅکله نه ورکوي.

وطن ته له راستنيدو سره يې مصر، هند او امريکا ته د محصلينو استولو شمېر زيات کړ، په ترکيه کې يې هم د پيلوټانو د زده کړې پروګرام پيل کړ، پردې سربېره يې د يو لړ لويو پروژو لپاره  له سعودي عربستان څخه د پينځه سوه مليون ډالرو مرستې لپاره خبرې اترې پيل کړې، له چين او کويټ سره يې هم د مرستو تړونونه لاسليک کړل.

دغه پېښې او له ايران، چين، مصر، ترکيې او سعودي عرب سره د داود خان د اړيکو توديدلو ته کمونستانو او روسانو ډېر په انديښنه کتل، پردې

سربېره پښتانه قومپال ډېر ګړندي پردې باوري کیدل چې، داود خان د ډیورنډ کرښې پورې غاړې پښتني سیمو څخه ډېر زر لاس پر سرکیدونکی دی، تر څو له ایران او امریکا څخه زیاته مالي مرسته ترلاسه کړي، اصلاً د پاکستان پوځي واکمن جنرال ضیاء الحق دا څرګنده کړې وه چې د پاکستان او افغانستان ترمنځ سوله پردې شرط کیدای شي چې افغانستان د بلوچستان او پښتونستان مسالو ته له لمن وهلو لاس واخلي او ډیورنډ کرښه د سرحد په توګه ومني.

د ۱۹۷۸ز په مارچ کې په اسلام آباد کې په خبرو اترو کې، دواړه لوري پردې خبره توافق ته راضي ښکاریدل، داود خان وویل چې دی دې شرط منلو ته په هغه صورت کې چمتو دی چې، پاکستان پښتو او بلوڅو سیمو ته تر یوه حده خپلواکي ورکړي.(داسې سند نشته چې داود خان دې د ډیورنډ کرښه د سرحد په توګه منلې وي، البته داسې شواهد شته چې افغانستان ته ګوادر ته لاره ورکړي، په مقابل کې یې د ډیورنډ کرښې دواړه غاړې آزادې اړیکې ولري چې ټول تفصیل یې لوی بحث غواړي. ژباړن)

پښتنو قومپالو ته هغه مهال شک پیدا شو چې داود خان کوم تړون ته نږدې شوی دی چې کله بېرته کابل ته راستون شو نو د بلوچو او پښتنو قبایلي مشرانو ته یې په یوه ملاقات کې وویل چې د دوی هغه لس زره تنه یاغیان باید د اپریل تر ۳۰مې له افغانستانه ووزي.

له پاکستان سره دتړون خبره په پوځ کې ډېره ګړندی خپره شوه. کمونیستانو له دې نه سمدستي ګټه اوچته کړه، داود خان دا احساس کړه چې ډېر په سرعت یوازې کیږي، د ده ټول ځواک د پولیسو او پوځ تر یو

شمېر هغو کمونست مخالفو کسانو پورې محدود شو چې ده ته وفادار وو. هغوی د حکومت له ټولو ارګانونو نه د کمونستانو په لرې کولو لاس پورې کړ. همدغه مهال د پرچم ډلې يو مهم مشر مير اکبر خيبر د اپريل پر ۱۷مه ووژل شو چې ډېره ناکراري ورسره خپره شوه، د همدې ناکراريو په لړ کې د اپريل پر ۲۵مه نورمحمد تره کي، ببرک کارمل او پينځه تنه نور کمونيست مشران ونيول شول. خو حفيظ الله امين يوازې په کور کې نظر بند شو، نوموړي د داود خان د نسکورولو پلان چې پخوا خلق ګوند چمتو کړی ؤ په پټه خپلو پوځي انډيوالانو ته ورساوه، د پلان کاپي ګانې د هوايي او ځمکني پوځ په مشرانو کې وويشل شوې چې د اپريل پر ۲۷مه هغوی بغاوت پيل کړ. د دې پوځي بغاوت قومانده د څلورمې لوا په لاس کې وه، دوی د اوومې او اتمې فرقې له يو څه مخالفت سره پردې وتوانيدل چې کمونيست مشران راخوشي کړي، د پوځ نور يونټونه له کودتا چيانو سره ملګري شول. د هوايي ځواکونو افسران هم له کودتا چيانو سره ملګري شول. خو الوتکې يې له ماسپښين وروسته راپور ته کړې، له بګرام هوايي ډګره را پورته شويو شپږو الوتکو پر ارګ ماڼۍ بمباري پيل کړه، د ورځې تر پايه امين کنترول تر لاسه کړی ؤ او درې ورځې وروسته يې اعلان وکړ چې د نوي افغانستان انقلابي شورا واک په لاس کې واخيست، په دې موده کې داود خان د خپلې کورنۍ له ټولو غړيو سره ووژل شو.

نور محمد تره کي او ببرک کارمل ولسمشر او مرستيال وټاکل شول، حفيظ الله امين د صدراعظم لومړی مرستيال او دبهرنيو چارو وزير وټاکل شو جګړن اسلم وطنجار چې د څلورمې قوا د مرستيال په توګه يې کودتا

رهبري کړې وه، د صدراعظم مرستیال، او د هوایي ځواکونو قوماندان ډګروال قادر د دفاع وزیر وټاکل شو.

ډېر زر امین له خپلو پخوانیو ملګریو سره، چې اوس یې رقیبان شوي وو د واک پر سر په زور ازمویلو کې راښکیل شو. د جون په پای کې یې کارمل او د ده شپږ نور انډیوالان د سفیرانو په توګه له هیواده د باندې ولیږل، په اګسټ کې یې عبدالقادر د کودتا په جرم ونیو او زندان ته یې واچاوه، کارمل یې چې په پراګ کې سفیر ؤ بېرته کابل ته راوغوښت، خو دغه حکم نه ده ومانه او نه یې نورو شپږو ملګریو، هغوی د نیولو او په زور وطن ته د راوستلو له وېرې بې درکه شول. په دې موده کې اسلم وطنجار چې هڅه یې کوله د دفاع وزیر شي، راټیټ کړای شو او د ترانسپورټ د وزیر په توګه وټاکل شو.

له دې سره امین یو لړ اصلاحات پیل کړل، سره له د ې چې دغه اصلاحات د عام ولس په ګټه وو خو د پلي کولو پلان یې کمزوری او ناقص ؤ، د ځمکو د ملکیت او د ښځو د حقوقو په اړه اصلاحات یې، د هغو خلکو چې په زیان یې وو او د سنتي ملایانو له سخت مخالفت سره مخ شول. امین دغه اصلاحات په زور نافذ کړل، چې چېرته یې اړتیا شوه د پټو پولیسو نه یې کار واخیست چې مشر، یې د ده وراره ؤ. همدغسې یې له مصنوعي محکمو څخه کار واخیست. خو له هیواده بهر د دوی مخالف اسلامي بنسټپال ځواکمن شول او مرستې ورسره پیل شوې، له هغوی څخه یې ځینو له پاکستان څخه وسله وال ګروپونه هم افغانستان ته واستول.

د امین د واکمنۍ له دوام نه د شوروي اتحاد اندېښنه زیاتیدله، امین د روسانو دې غوښتنې ته هیڅ پام نه کاوه چې له خپلو مخالفینو (خلق او پرچم) سره واک شریک کړي. اوس په څو جبهو کې له امین سره مخالفت روان ؤ، په ۱۹۷۹ز فبروري کې د پښتنو مخالفو تاجکانو چې له ستم ملي ډلې سره تړلي وو، د امریکا سفیر اډولف ډابس وتښتاوه او د خوشي کولو په بدل کې یې د خپل مشر، بهرالدین باعث د خوشي کیدو غوښتنه وکړه، افغان حکومت له برمته کوونکیو سره له خبرو انکار وکړ او هغه هوټل ته یې پولیس واستول چې دوی سفیر پکې برمته کړی او ساتلی ؤ، د پولیسو په برید کې سفیر او تښتوونکي دواړه ووژل شول.

د ډابس له وژل کیدو وروسته امین وویل چې ستم ملي له پرچم ډلې سره نږدې اړیکې لري او دوی له کا جي بي سره هم اړیکې لري، د دې سفیر د تښتولو موخه له امریکا سره د حکومت د اړیکو خرابول وو، پر ۱۹۸۰ز کې د امریکا د بهرنیو چارو وزارت په یوه راپور کې ویل شوي چې له پولیسو سره څلور تنه روسي سلاکاران هم وو، چې له هغو څخه درې تنه په هغو عملیاتو کې شریک وو چې پر هوټل یې چاپه ووهله، له دوی څخه یو تن د ودانۍ په شاوخوا کې له هغو پولیسو سره ؤ چې د ده په لارښونه او قومانده ډزې پیل شوې.

په مارچ کې د افغانستان په لویدیز ښار هرات کې، د حکومتي پوځیانو او یاغیانو ترمنځ جګړه ونښته، دغه مهال اوولسمه فرقه هم له حکومته واوښته او له پاڅون والو سره ملګرې شوه، له دوو اونیو جګړې وروسته حکومت پردې وتوانید چې پاڅون غلی کړي، په دې موده کې درې زره تنه ووژل

شول. په هغوی کې ۹۰تنه روسي سلاکاران او د هغوی د کورنیو غړي هم وو چې په کورونو کې یې ووژل شول. وروسته معلومه شوه چې د پاڅون کوونکیو مشرانو ته، وسلې او پوځي روزنه د آیت الله خمیني حکومت ورکړي وو چې یوه میاشت وړاندې یې د ایران واکمني ترلاسه کړې وه، پردې سربېره ځایي اوسیدونکي چې ډېری یې شیعه مذهبه دي،له پاڅون سره ملګري شول.(دلته د ایران مخالفې روحیې تر اغیز لاندې مبالغه شوې ده. د هرات فرقې د پاڅون مشران جګړن علاوالدین او تورن اسماعیل خان وو، او په دغه ولایت کې ډېری اوسیدونکي سنیان دي. ژباړن)

تر دې وروسته د جون پر ۲۳مه په کابل کې افغان پوځیانو پاڅون وکړ، او د اګسټ پر ٦مه یو بل پاڅون وشو چې یوه افغان یونټ د کابل د بالاحصار د نیولو هڅه وکړه.

دغه مهال، امین او تره کي شوروي مشرانو ته وویل چې د یو پر بل پسې پاڅونونو د راقابو کولو لپاره پوځ ور واستوي. شوروي اتحاد له دې غوښتنې منلو ډډه وکړه، خو د پوځي وسایلو او ګنشپ څرخیو د ورکولو په بڼه یې مرسته ورسره وکړه چې په یوه میاشت کې افغانستان ته ورسیده.

د وضعې له خرابیدو سره له پاڅون کوونکیو سره سعودي عرب، مصر، متحده عربي اماراتو او چین هم مرستې پیل کړې چې له دې سره هغوی ډېر پیاوړي شول، شوروي اتحاد له دې وضعې څخه ډېر اندېښمن شو، امین ته یې وړاندیز وکړ چې له ببرک کارمل سره ګډ حکومت جوړ کړي چې اوس په پراګ کې اوسیده او هلته یې سیاسي پناه اخیستي وه. امین پردې ناراضه شو او وړاندیز یې هم ونه مانه، هغه له تره کي سره هم په جنجال

کې لویدلی ؤ چې اسلم وطنجار یې د دفاع وزیر او یو بل خلقي شیرجان مزدوریار یې د کورنیو چارو وزیر ټاکلی ؤ، پردې سربېره تره کي د امین وراره اسدالله امین د خاد(پټو استخباراتو ادارې) له مشرتابه څخه لرې کړ او یو بل خلقي یې د اسدالله سروري په نامه د هغه رئیس وټاکه، چې امین دې کار نور هم وپارولو.

شوروي اتحاد یو بدیل پلان جوړ کړ، چې تره کي ولسمشر شي، ببرک کارمل صدراعظم او امین د سفیر په توګه کوم بهرني هیواد ته واستوي، د ۱۹۷۹ز په سپتمبر کې مسکو ته د سفر په بهیر کې تره کي پردې پلان راضي شو، خو هغه یو بل پلان افشا نه کړ چې ده پرې کار کاوه، هغه دا چې له مسکو نه تر ستنیدو وروسته چې امین د ده هر کلي ته هوایي ډګر ته راځي، نو په لاره کې به وژل کیږي، خو له مسکو نه د تره کي تر روانیدو لږ وړاندې یوه مخبر دغه خبر کا جي بي ته ورساوه چې بیا روسانو د خپلمنځي لانجې له امله د افغانستان د حکومت د کمزوري کیدو له ویرې تره کی له دې پلان عملي کولو څخه را ایسار کړ.

تر دې وروسته د تره کي او امین ترمنځ اړیکي نور هم خراب شول، هر لوري له بل څخه د استعفا غوښتنه کوله، په دې موده کې د سپتمبر پر ۱۴مه اسدالله سروري د امین د وژلو پلان جوړ کړ خو ناکام شو، امین په ځوابي اقداماتو لاس پورې کړ، واک یې ترلاسه کړ او خپل ټول رقیبان یې له دندو برطرف کړل، خو د هغوی د نیولو هڅه ناکامه شوه، ځکه ټولو پخوا د کاجي بي د یوه مامور په کور کې پناه واخیستله.

## د سي آی اې پټې جګړې

د اکتوبر پر لسمه کابل راډیو اعلان وکړ چې تره کی له سختې ناروغۍ وروسته مړ شو، خو شوروي اتحاد ته وروسته دا معلومه شوه چې هغه د سپتمبر پر ۱۷مه د امین درې تنو ملګریو وواژه. پردې مسکو خواشینی شو او دا بدګومانۍ ورسره پیدا شوې چې امین به د مرستې لپاره له امریکا سره ملګری شي. وطنجار، سروري، مزدوریار او د خلق ګوند یو وتلی غړی سید محمد ګلابزوی چې د کا جي بي د غړي په کور کې پټ وو، دوی له امریکا سره د امین د مخ پر زیاتیدونکیو اړیکو په اړه معلومات راټولول.

دغه بدګومانۍ ببرک کارمل او د هغه شپږو نورو ملګریو هم تائید کړې چې اوس په مسکو کې راټول شوي وو.

دوی ډېر په ټینګار شوروي مشرانو ته ویل چې امین لویدیزوالو ته مخ اړولی دی. ظاهراً دا هماغه مهال ؤ چې په دارلامان ماڼۍ کې د کاجي بي مامور طالبوف ته د امین د وژلو ماموریت ورکړ شو، خو هغه په دې کې ناکام شو.

د شوروي اتحاد په واکمنو کې ځینې په افغانستان کې د پوځي مداخلې سخت مخالف وو، او ځینې یې پلویان. د پلویانو په ډله کې ولسمشر بریژنف، د دفاع وزیر دیمتري استینوف، او د کا جي بي د بهرنۍ څانګې مشر وکتور خرچکوف شامل وو، په مخالفینو کې بیا صدارعظم الکسی کاسیګین، د بهرنیو چارو وزیر اندري ګرومیکو، او د کا جي بي مشر اندرپوف شامل وو.

شوروي اتحاد پر ډېرو مسایلو اندېښنه درلوده، یوه اندېښنه یې دا وه چې امین امریکا ته د استخباراتو د مانیتور د برېښنایي مرکز د جوړولو اجازه

ورکولای شي، تر څو د ایران د اسلامي انقلاب له بري سره په هغه هیواد کې د له منځه تللیو دوو مرکزونو جبران وکړي.

دغه مرکز به د شوروي اتحاد د مخابراتي او رادیویي خپرونو او د بیکو نور د توغندیو او د فاعي خلایي نظام د څپو جاسوسي کوي.

د بیکونور خلایي مرکز د قزاقستان په جنوبي منځنۍ سیمه کې د سیردریا پر غاړه دی، یو امکان دا ؤ چې په تهران کې د امریکا د سفارتخانې د نیولو او د دپلوماتانو د یرغمل کولو له پېښې وروسته امریکا نیغ په نیغه پر ایران برید وکړي.

د دفاع وزارت او دشوروي اتحاد د جنرالانو کومیټې، زیات مشران منصبداران پردې مساله سره ویشل شوي وو. په سختو مخالفینو کې د پلیو قواو قوماندان مارشال نیکولای اورګاکوف، د هغه لومړی مرستیال مارشال سرګي اخرو می یوف، او د ضربتي قواو قوماندان جنرال ویلنټن ویر بنکوف شامل وو، یو څو نور د محدود شمېر پوځ استولو پلویان وو، چې په کابل او ځینو نورو ښارونو کې وي او په جګړه کې برخه وانخلي.

۱۹۷۹ز کال مخ پر پایته رسیدو ؤ، وضعه د امریکا او شوروي د اړیکو له خرابوالي سره نوره هم خرابه شوه، که څه هم د دواړو هیوادونو ترمنځ د جون پر ۱۸مه د دوهم سالټ تړون په ویانا کې لاسلیک شوی ؤ چې یو هیواد به هم له (۲۴۰۰) اتومي وسلو څخه زیاتې نشي ساتلای. پردې تړون بریژنف او جیمي کارتر لاسلیکونه کړي وو.

خو دغه تأثر چې (دیتانت) ختمیږي، هغه مهال زور واخیست چې کله د امریکا د سنا د وسلوال پوځ کومیټې د نومبر پر ۳۰مه دوهم سالټ تړون

رد کړ. پردې سربېره امریکا دا پریکړه کړې وه چې، منځني واټن ویشتونکي بالستیک توغندي په اروپا کې نصب کړي، د دسمبر پر ۱۲مه، ماښام مهال د شوروي اتحاد سیاسي بیرو غونډه وکړه چې په دې کې یې افغانستان ته د پوځونو ننه ایستلو پرېکړه وکړه، دوې اونۍ وروسته یې یرغل وکړ.

لکه چې یوه ژورنالیست جان کې کولي په خپل اثر (سپیڅلې جګړه... افغان، امریکا او نړیوال تروریزم) کې لیکي:

- شپږ میاشتې وړاندې د جولای پر ۳مه د امریکا ولسمشر کارتر د افغانستان د مجاهدینو له غورځنګ سره د سي آی اې په واسطه په پټه د مرستې ورکولو پرېکړه کړې وه.

د دې پرېکړې تر ټولو لوی ملاتړی د امریکا د ملي امنیت سلاکار زیبګو بریژنسکي ؤ، هغه فکر کاوه چې شوروي اتحاد په یوه اوږده جګړه کې را ښکیل کړي چې له همدې لامله به له منځه لاړ شي، او دا د سړې جګړې د پایته رسولو یو فرصت دی، څو کاله وروسته هغه ولیکل چې پټ عملیات ډېر ښه پلان ؤ، د دې موخه دا وه چې روس د افغانانو په دام کې ونښلوي.

ژورنالیست سلیګ هریسن (پر افغانستان د شوروي یرغل، د پردې تر شا حقایق) نومي اثر کې چې له ډیګو کوردوویز سره په شریکه لیکل شوی، لیکلي چې: د امریکا د بهرنیو چارو وزیر سایرس وانس که څه هم د بریژینسکي د پالیسۍ مخالفت ونه کړ، خو هغه پردې توندې نیوکې درلودې، هغه پردې پوهیده چې پر افغانستان د شوروي د پوځ د یرغل لومړی ورځې دي، باید د دوی د بیرته وتلو لپاره خبرې اترې پیل شي.

## د سي آی اې پټې جګړې

د هغه وړاندیز دا ؤ چې دواړه هیوادونه دې دا تړون لاسلیک کړي چې نه به ایران یا پاکستان ته پوځ استوي نه به پوځي اډې جوړوي. له دې سره به په جنوبي آسیا کې د روسانو اندېښنې ختمې شي او له افغانستان څخه د وتلو یوه زمینه به ورته برابره شي.

د فبروري په پیل کې د ولسمشر کارتر په تائید، هغه د روس د بهرنیو چارو وزیر اندري ګرومیکو ته یو لیک واستاوه. په هغو کې یې د هغو اصولو پر بنسټ د خبرو اترو وړاندیز کړی ؤ چې که له دواړو لوریو له زغم کار واخیستل شي او د سیمې د هیوادونو خپلواکۍ او سلامتۍ ته درناوی وشي، نو زموږ ګټې به د ټکر او جنجال سبب نشي، د ګرومیکو ځواب مثبت ؤ، وانس له کارتر نه د خبرو اترو د انتظام منظوري وغوښته، بریژنسکي په کلکه د دې مخالفت وکړ او کارتر یې ورسره همنظره کړ، ځکه خو یې وانس ته وویل چې نور په دې برخه کې وړاندې مه ځه .

د سي آی اې په جګپوړیو چارواکیو کې هم سختې اندېښنې وې، په دوی کې د مرکزي استخباراتو (ډي سي آی) مشر ایډ مرل سټانس فیلډ ترنر هم شامل ؤ. ټرنر پردې خبره ډېر بحثونه وکړل چې آیا امریکا ته دا جایز دي چې د خپلو جغرافیایي سیاسي ګټو لپاره د نورو خلکو له ژونده کار واخلي؟ هغه پردې هم اندېښنه درلوده چې د سي آی اې لخوا چمتو شوې وسله به شوروي د پوځونو پر خلاف و کارول شي، او پردې یې هم نیوکه وه چې آیا تر وروستي افغانه به جګړه دوام کوي؟

خو بیا یې خپل ضمیر ویده کړ او د مرستو منظوري یې ورکړه!

*　　　*　　　*　　　*

## د سي آی اې پټې جګړې

د امریکا د پلان مرکز پاکستان ؤ، چې د سړې جګړې له پیل سره له دې هیواد سره د امریکا اړیکې ټینګې شوې وې، د ۱۹۵۰ز لسیزې له پیله پاکستان د شوروي اتحاد پر خلاف د امریکا د بربېښنایي جاسوسۍ د مانیټور (ایلنټ) او د زیګنالونو د جاسوسۍ (سګنټ) عملیاتو نه بیلیدونکې برخه ګرځیدلی ؤ.

د ۱۹۵۴ز په می کې پاکستان له امریکا سره یو تړون لاسلیک کړ، چې د هغو له مخې پاکستان ته د استخباراتي آسانتیاو د پر لپسې کارولو په بدل کې پوځي مرستې چمتو کیدې. په همدې کال په سپتمبر کې پاکستان له امریکا، برتانیې، استرالیا، نیوزیلانډ او فلیپین سره په (سیټو) سازمان کې شامل شو چې د کمونیزم د مخنیوي په خاطر جوړ شوی ؤ. په ۱۹۵۵ز کې پاکستان له برتانیې، ترکیې او ایران سره د سینټو په سازمان کې شامل شو، چې موخه یې د تیلو په تولیدوونکیو سیمو کې د شوروي اتحاد له نفوذ سره مقابله وه.

د ۱۹۵۰ په لسیزه کې ډېره موده د پاکستان سیاسي وضعه بحراني وه، تردې چې د ۱۹۵۸ز په اکتوبر کې ولسمشر سکندر میرزا، پر ګوندونو بندیز ولګاوه، اساسي قانون یې لغوه اعلان کړ او د جنرال محمد ایوب خان په مشرۍ یې پوځي حکومت نافذ کړ، ایوب خان د دې حکومت صدراعظم ؤ چې په کابینه کې یې درې تنه جګپوړي پوځي جنرالان او اته تنه ملکي وزیران وو. تر دې لږ موده وروسته ایوب خان سکندر میرزا هم رخصت کړ او پخپله د هیواد ولسمشر، د پوځ مشر او د پوځي حکومت د مشر په توګه را وړاندې شو.

## د سي آی اې پټې جګړې

پوځي حکومت د ۱۹٦٢ز تر نیمایي پورې دوام درلود چې بیا د نوي قانون له مخې صدارتي نظام نافذ شو. د ۱۹٦٥ز په جنوري کې ایوب خان نوی دواک مشروعیت لاسته راوړ، خو په دې کال پاکستان د کشمیر پر سر له هند سره یوه لنډه او بې پایلې جګړه وکړه، چې له همدې لامله د امریکا مرستې وځنډیدې او له کورنیو لانجو وروسته بیړنی حالت نافذ شو، چې څلور کاله یې دوام وکړ، په دې موده کې له حکومت سره ولسي مخالفت مخ پر زیاتیدو ؤ.

د ۱۹٦۹ز په مارچ کې چې کله پر ایوب خان فشارونه ډېر زیات شول، نو واک یې د پوځ مشر جنرال یحی خان ته وسپاره، پر هیواد یو ځل بیا پوځي حکومت حاکم شو، خو په نومبر کې یحیی خان اعلان وکړ چې د راتلونکي کال په دسمبر کې به انتخابات وکړي. دغه انتخابات پر ټاکلي وخت وشول، چې په لویدیځ پاکستان کې د ذوالفقار علي بوټو د خلکو ګوند، او په ختیځ پاکستان کې د شیخ مجیب الرحمان عوامي لیګ وګټل.

بوټو له عوامي لیګ سره په ګډه د حکومت له جوړولو ډډه وکړه چې په پایله کې یې انتخابات لغوه اعلان شول. له دې سره په ختیځ پاکستان کې اړو دوړ پیل شو چې ورو ورو په کورنۍ جګړه بدل شو.

د پاکستان پوځ د بغاوت پر چوپولو وګومارل شو، د پوځ له ظلم څخه لس لکه تنو هند ته پناه یووړه. هند پر ختیځ پاکستان برید وکړ، په جګړه کې پاکستان د هند له لاسه سخته ماته وخوړه او ختیځ پاکستان د (بنګلادیش) په نامه له پاکستان نه بېل او خپلواک شو. له دې شرمناکې

## د سي آی اې پټې جګړې

ماتې وروسته په دسمبر کې یحیی خان استعفا وکړه او ځای یې د بهرنیو چارو وزیر ذولفقار علي بوټو ونیو.

په ۱۹۷۳ز کې د نوي اساسي قانون له نفاذ وروسته، چې د ولسمشرۍ کرسي پکې تر ډېره حده تشریفاتي وه، بوټو صدراعظم شو، د کورنیو چارو، بهرنیو چارو او د فاع وزارتونه یې هم له ځان سره وساتل. په راتلونکیو څلورو کلونو کې یې داسلامي سوسیالیزم پالیسۍ غوره کړې، چې کوم خاص بدلون ورسره رانغی، د ده واکمنۍ، چټکه د دیکتاتورۍ بڼه خپلوله، پر حکومت د نیوکو مخه یې ډب کوله، مخالفین یې زندان ته غورځول، د پښتنو او بلوڅو پر خلاف یې له جبر نه ډک اقدامات وکړل. له دې سره یې داسې هڅې هم پیل کړې چې پاکستان یو پیاوړی هیواد شي، په ۱۹۷۴ز کې د هند له لومړۍ اتومي ازموینې وروسته یې د اتومي وسلو جوړول پیل کړل، هغه داسې اقدامات هم وکړل چې په سیاست کې د پوځ رول راکم کړي، جګپوړي پوځیان یې برطرف کړل او د قوماندې نظام یې بدل کړ، د پوځ عمومي قوماندانۍ مقام یې له منځه یووړ. یو له همدې لامله، او بل په بلوچستان کې د ولسي بغاوت د ځپلو لپاره یې د پوځي یونټونو د استولو له لامله پوځ ترې ناراضه شو. په دې موده کې ده هڅه وکړه چې له چین او شوروي اتحاد سره اړیکې تودې کړي او ځان یې له اروپا او امریکا څخه لرې کړ.

د ۱۹۷۷ز په جنوري کې بوټو په دوو میاشتو کې دننه د انتخاباتو د ترسره کولو اعلان وکړ، نهو سیاسي ګوندونو د (پاکستان ملي اتحاد) په نامه اتحاد جوړ کړ، له تاوتریخوالي په ډکو انتخاباتو کې د بوټو خلکو ګوند لویه بریا

وګټله، خو د درغليو او لاسوهنو پېښې را څرګندې شوې، په کراچۍ او نورو ښارونو کې ډېره ناکراري خپره شوه، بوټو پوځي حکومت نافذ کړ او د نا آراميو د چوپولو لپاره يې پوځ ته بلنه ورکړه، هغه ملي اتحاد ته د امتيازاتو وړانديز وکړ او غوښتل يې په دې ډول يې آرام کړي. خو (ملي اتحاد) له نويو انتخاباتو پرته پر بل څه له قناعت څخه انکار وکړ.

پوځ چې په هيواد کې له مخ پر زياتيدونکې ناکرارۍ څخه په اندېښنه کې ؤ، د جنرال ضياءالحق په مشرۍ يې په جولای مياشت کې انقلاب وکړ او بوټو يې له واکه لرې کړ.

بوټو يې زندان ته واچاوه، په ۱۹۷۴ز کې يې د يوه سياسي مخالف د وژلو د هڅې په تور محاکمه کړ او د مرګ سزا يې ورته واوروله. راتلونکی کال په اپريل کې يې هغه په دار وځړاوه.

ضياءالحق يو احساساتي مسلمان ؤ چې د جرايمو په اړه يې اسلامي سزاګانې نافذې کړې، نومونړي د پاکستان له جوړيدو وروسته په هيوادني سياست کې د مهم رول لرونکيو دوو اسلامي ګوندونو، مسلم ليګ او جماعت اسلامي ملاتړ له ځانه سره درلود.

يو کال وروسته يې د مسلم ليګ او نورو مذهبي ګوندونو له غړيو نه کابينه جوړه کړه، او په ۱۹۷۸ز کې نومونړي د ولسمشرۍ مقام سنبال کړ، د ضياءالحق د حکومت له جوړيدو سره د کورنيو او بهرنيو چارو په شمول په زياترو برخو کې د پوځ کنترول بيا ټينګ شو، سياسي ګوندونه مايوس شول چې په پايله کې مسلم ليګ او جماعت اسلامي د ضياءالحق له ملاتړ څخه لاس واخيست.

**ضیاءالحق ورو ورو یوازې شو، له امریکا او د کارټر له حکومت سره یې د اړیکو خرابوالي وضعه نوره هم خرابه کړه، د کارټر حکومت د پاکستان له اتومي پروګرام څخه اندېښنه درلوده، له همدې لامله یې د پاکستان پوځي مرسته ځنډولې وه، خو د ۱۹۷۹ز په پیل کې د افغانستان د وضعې خرابوالي د امریکا پاملرنه دې هیواد ته ور زیاته کړه. خبریال پټرنائس وینډ د فبروری پر ۲مه په واشنګټن پوسټ کې ولیکل چې پاکستان دغه مهال د افغان حکومت له مخالفو چریکانو سره ښه په خلاص مټ مرسته کوله. دوی ته یې د پاکستان د پوځ په پخوانیو پوځي مرکزونو کې د اوسیدو زمینه برابره کړه، کله چې له ضیاءالحق سره اړیکه ونیول شوه او ورته وویل شول چې له افغانستانه د شوروي پوځونو د ایستلو لپاره د لومړۍ جبهې رول ادا کړي، نو هغه له امریکا سره د اړیکو ښه کولو لپاره سمدستي له دې فرصت څخه ګټه اوچته کړه، او د امریکا د پرلپسې مرستو بهیر یې باوري کړ.**

*  *  *  *

**د ولسمشر کارټر له لوري له افغان مجاهدینو سره د پټې مرستې له پرېکړې وروسته، په راتلونکیو میاشتو کې سي آی اې د خپلې پټې څانګې د عملیاتو ریاست (ډي ډي او) تر څارنه لاندې، د خپلو پټو ماموریتونو تفصیلات تنظیم کړل. (ډي ډي او) د ۱۹۶۰ز په لسیزه کې په کیوبا، ویتنام، لاوس، کمبوډیا، انګولا، تبت او نورو ډېرو نورو هیوادونو کې پټ عملیات سرته رسولي وو. په کیوبا او بې آف پګز کې د ماموریت له بربادوونکې ناکامۍ سره سي آی اې ډېره بدنامه شوه. همدغسې په برما کې د قومپالو چینایي**

## د سي آی اې پټې جګړې

پوځونو سره د ګډ ماموریت له رسوا کیدو سره چې تریاک یې چمتو کول، د سي آی اې شهرت زیانمن شو، ځکه خو پرېکړه وشوه چې له افغانانو سره به د سي آی اې کوم مامور نیغ په نیغه اړیکه نه لري، پلان دا ؤ چې د مسلمانو بنسټپالو پوځ به د شوروي اتحاد پر خلاف د یوې اوږدې او لوړو لګښتونو جګړې لپاره روزل کیږي. د دې لپاره چې په دې جګړه کې پر سي آی اې د ګډون تور پورې نشي پرېکړه وشوه چې، امریکا به د پاکستان پوځ او منصبداران روزي او هغوی به افغان چریکان چې ځانونو ته مجاهدین وایي وروزي او هدایات به ورکوي.

د دې روزنې د زمینې برابرولو لپاره (ډي ډي او) د امریکا د پوځ د عملیاتو خاص ګروپ، په ځانګړې توګه د خاصو ځواکونو پینځم ځواک (هوایي کوماندو) غړي او د امریکا سمندري ځواک کوماندو ګروپونه (سیلز) پردې خدمت وګومارل شول. دغه یونټونه زیاتره په ویتنام، لاوس، کمبودیا او نورو ځایونو کې د پټو عملیاتو ماهرین او د تجربو خاوندان وو، د روزنې له بشپړولو وروسته به دغه منصبداران بېرته پاکستان ته استول کیدل او هلته په آی اس آی کې شاملیدل. آی اس آی پر ۱۹۷۱ز کې د استخباراتي بیرو د ادارې پر ځای جوړ شو. ددې مرکز په اسلام آباد کې ؤ او دندې یې لکه چې له نامه ښخه یې ښرګنده وه یوازې د پاکستاني پوځ د پوځي استخباراتو دادارې له لوري د جاسوسي معلوماتو تر راټولولو پورې محدودې نه وې، ، بلکې له هیواده بهر او په هیواد کې دننه د جاسوسۍ چارې ټولې د دوی په دندو کې شاملې وې. د ځینو رپوټونو له مخې د دې شپږ ځانګې دي.

## د سي آی اې پټې جګړې

1 - مشترک استخباراتي ګروپ(جي آی سېکس) د دې ادارې کار د جاسوسي ارزونو او ګواښونو ارزونه چمتو کول، او د آی اس آی يونټونو ته د اداري مرستو رسول دي.

2 - د ګډو استخباراتو بيرو(جي آی بي) دغه داره سياسي جاسوسي کوي، او درې برخې لري، چې د يوې دنده يې د هند دننه د عملياتو سرته رسول دي.

3 - د ګډو متقابلو استخباراتو بيرو (جي آی بي) دغه څانګه په منځني ختيځ، جنوبي آسيا او چين کې جاسوسي کوي، او په بهرنيو هيوادونو کې د پاکستان ډپلوماتان څاري.

4 - د شمال ګډو استخباراتو څانګه (جي آی اېن) دا په جمو او کشمېر کې پټ عمليات کوي.

5 - د ګډو استخباراتو عضلاتي څانګه (جې آی اېم) دا په اروپا او امريکا کې د جاسوسۍ دنده لري.

6 - د شريکو زيګنالونو استخباراتي مديريت (جې اس آی بي) دا (سګنټ) عمليات کوي د دې لپاره دوی د هند بريدونو ته څېرمه خپرونکي مرکزونه جوړ کړي دي، پردې سربېره دوی د کشمير مسلمانو جنګياليو ته د راديويي خپرونو اسانتياوې چمتو کړې دي.

لکه چې په پيل کې مو وويل، آی اس آی تر يوې مودې پورې د افغانستان د حکومت مخالفو جنګياليو ته وسلې او د وسلو روزنې برابرولې، د شوروي اتحاد له يرغل څخه سمدستي وروسته جنرال ضياءالحق، ډګر جنرال اختر عبدالرحمان د آی اس آی نوی مشر وټاکه، کله چې ضياءالحق له هغه څخه

د شوروي له خطر سره د مقابلې په اړه نظر وغوښت، نو ده وړاندیز وکړ چې پاکستان دې افغان جنګیالیو ته هر ډول مرستې ورکړي، پردې به نه یوازې د پاکستان بلکې د ټولې اسلامي نړۍ دفاع وشي، د سي آی اې د مشر په څېر جنرال اختر عبدالرحمان هم داسې احساسوله چې د اوږدې چریکي جګړې لپاره به افغانستان د شوروي اتحاد لپاره ویتنام شي. هغه دا نظر درلود چې پاکستان دې مجاهدینو ته یوازې وسله نه ورکوي، بلکې پوځي روزنه، مسلکي جاسوسي او نورې لارښوونې دې هم ورکړي. د دې موخې لپاره په سرحد ایالت (اوسنی خیبر پښتونخوا) کې باید کمپونه او مرکزونه جوړ شي، چې نه یوازې دوی پکې وروزل شي بلکې له همدې مرکزونو په افغانستان کې پوځي بریدونه هم تنظیم شي.

ضیاء دغه وړاندیزونه ومنل، جنرال اختر عبدالرحمان سمدستي دغه ماموریت د آی اس آی (افغان بیرو) ته وسپاره. د دې ادارې دنده دا وه چې د مجاهدینو د عملیاتو څارنه وکړي او دوی ته لوژیستکي مرستې ورسوي. د دې ادارې مرکز په اوجړي کمپ کې ؤ چې د راولپنډۍ په شمالي څنډه کې د پوځ لویه اډه ده.

په جګو دیوالونو کې را ایسار په اتیا هکتاره ځمکه کې جوړ شوي دغه کمپ کې دفترونه، د وسلو او پوځي توکیو لویې لویې ډیپوګانې، ګیراجونه چې په هغو کې درې سوه عرادې لارۍ اونور موټرونه دریدلي وو. د پینځه سوه تنو لپاره د استوګنې خونې او اړتیا وړ شیان، او د روزنې ځای وو.

له ۱۹۸۳ز څخه تر ۱۹۸۸ز پورې ددې بیرو مشر ډګروال یوسف په خپل اثر (د یږې تلک) کې لیکلي چې دې بیرو درې نورې څانګې درلودې:

## د سي آی اې پټې جګړې

1 - د عملیاتو څانګه، د جاسوسۍ ماموریت، پلان جوړول، د اهدافو انتخاب او مجاهدینو ته یې د مسوولیتونو ورسپارلو دنده درلوده.

2 - لوژیستیکي څانګه، د وسلو او وسایلو ترلاسه کول او پر مجاهدینو د هغوی د ټاکلو برخو ویشل، د دوی دنده وه.

3 - د رواني جګړې څانګه، په دې څانګه کې په سرحد ایالت کې درې رادیو یې ترانسمیټرونه فعال وو، له بیرو سره په پېښور او کوټه، او نورو ښارونو کې (اډې) وې، د آی اس آی یو بل یونټ چې له افغان بیرو څخه بېل ؤ. د سي آی اې له چمتو کړیو پیسو څخه یې خوراکي مواد او جامې برابرولې او مجاهدینو ته یې رسولې.

*　　　*　　　*　　　*

افغان جهادي غورځنګ چې په اوو لویو ګوندونو ویشل شوی وو، تر ټولو لوی مرکز یې پېښور ؤ، په دوی کې له یوه پرته نور ټول سني ګروپونه وو او د ۱۹۷۸ز له کمونیستي کودتا وروسته جوړ شوي وو (د پېښور ګوندونه ټول سني مذهبه وو، یو ګوند یې هم له شیعه ډلې څخه نه ؤ، همدغسې اسلامي حزب، او جمعیت اسلامي له ۱۹۷۸ز څخه پخوا په افغانستان کې جوړ شوي وو. ژباړن) له اوو څخه څلور ډلې بنسټپالې وې، لومړۍ ډله د حزب اسلامي وه، ډېرې پکې پښتانه وو او مشر یې ګلبدین حکمتیار ؤ چې د امریکا او لویدیز سخت مخالف ؤ، بنسټ یې په ۱۹٦۸ز کې ایښودل شوی ؤ، خو په ۱۹۷۹ز کې مولوي یونس خالص ترې بېل شو او بېل ګوند یې جوړ کړ چې د افغانستان ختیځ قومونه پکې شامل وو.

د حکمتیار ګروپ تر ټولو لوی او ډېر توندلاری ؤ چې غوښتل یې افغانستان د یوه ګوندیز اسلامي ریاست په بڼه اداره شي، هغه د کرنیزو اصلاحاتو او د ټولو صنعتونو د ملي کیدو پلوی ؤ، دې ګوند له اسلامي نړۍ سره نږدې اړیکې غوښتې او د پوځیانو شمیر یې له ۱۵-۲۰ زرو تنو پورې ؤ، چې له هغو څخه څلور زره تنه دایمي چریکان وو، د حکمتیار د نفوذ سیمه زیاتره جنوب ختیځه سیمه وه، خو په ننګرهار، کندوز، کونړ، لغمان او بغلان کې یې هم بشپړ فعالیتونه وو.

د خالص ګوند هم زیاتره پښتانه وو، هغه هم د اسلامي حکومت پلوی ؤ، خو دا ډېر لبرال او له لویدیځ سره د ښو اړیکو پلوی ؤ، د پوځیانو شمیر یې له ۱۵-۲۰ زرو تنو پورې وو. په دوی کې درې نیم رزه تنه تل وسله وال چریکان وو. د هغه تر ټولو مهم قوماندان جلالدین حقاني ؤ. د خالص نفوذ ساحه په ختیځ کې پر ننګرهار، پکتیا، پکتیکا، او کونړ ولایتونو سربېره د جلال آباد ښار ؤ.

دربیم ګروپ چې غیر پښتانه وو او ټول د بدخشان او پنجشیر درې تاجکان پکې راټول وو، جمعیت اسلامي ؤ چې مشر یې برهان الدین رباني ؤ. هغه د افغانستان په یوه دولتي تعلیمي اداره(کابل پوهنتون) کې د اسلامي قانون استاذ ؤ، نوموړی یو معتدل مسلمان ؤ، د لویدیز په اړه یې دریځ نرم ؤ. د هغه په ګروپ کې زیاتره کسبګر او د تعلیم خاوندان وو، په سیاسي او پوځي اړخ کې دغه ګروپ ډېر منظم ؤ، د جګړه مارو شمېر یې ۶۰زره تنه ؤ، چې له هغو څخه له ۱۲-۱۵زره پور تل وسله وال وو، د هغه د ګوند پوځي قومانده له احمدشاه مسعود سره وه، چې د فعالیت ساحه یې پنجشیر دره

وه. خو په بغلان، بدخشان، کندز، بلخ، سمنګان، کابل، هرات، فارياب، جوزجان او فراه کې يې هم فعاليت درلود.

څلورم بنسپال ګروپ اتحاد اسلامي ؤ چې د سعودي عرب ملاتړ ورسره ؤ، د څو سوه کسيزې دغې بنسټپالې ډلې مشر عبدالرب رسول سياف ؤ، په پيل کې دا د څو ګوندونو اتحاد ؤ، چې بيا هره ډله بېرته بېله شوه او د سياف په مشرۍ اتحاد اسلامي د يوې ځانګړې ډلې په توګه پاتې شو. د دوی د جنګياليو شمېر له ٦-١٥زره تنو پورې ؤ او د فعاليت سيمې يې زياتره ننګرهار، پکتيا، پروان او کابل وو.

پاتې نورې ډلې منځلارې او سنت پال بلل کيدل، د ١٩٧٨ز د غوايي له کودتا وروسته په پېښور کې جوړې شوې وې، په دوی کې لومړی ګروپ اسلامي ملي محاذ ؤ چې په ١٩٧٩ز کې جوړ شو او مشر يې پير ګيلاني ؤ، نوموړی د جلاوطن پاچا ظاهرشاه د قانوني پاچا په توګه د بيا راوستلو پلوی ؤ، د هغه د چريکانو شمېر تر ١٥زرو تنو پورې رسيدل چې ٢زره تنه به يې تل وسله وال وو، په دې ډله کې ډيری پښتانه وو.

بل منځلاری ګروپ د ملي نجات جبهه وه چې مرکز يې د هيواد جنوبي ولايات وو، دغه جبهه پر ١٩٧٨ز کې يوه روحاني مشر صبغت الله مجددي جوړه کړه، نوموړی د اسلامي تعليماتو سره سم د يوه جمهوري نظام راوستلو هڅې کولې، او د اند له اړخه لويديزپال ؤ، د پوځيانو شمېر يې له ٨-١٥زرو تنو پورې ؤ، چې په کونړ او کندهار کې يې فعاليت درلود.

په منځلارو کې تر ټولو لوی ګروپ حرکت انقلاب اسلامي ؤ، چې پر ١٩٧٨ز کې د ولسي جرګې د پخواني غړي مولوي محمد نبي محمدي لخوا جوړ شو،

## د سي آی اې پټې جګړې

په دې ګروپ کې پښتانه او ازبک شامل وو، دغه ګروپ د جمهوري نظام او له نورو هیوادونو سره د بې طرفی پلوی ؤ. د جنګیالیو شمیر یې دیرش زره تنو ته نږدې ؤ چې پر لوګر، غزني، فراه، هرات، او کابل سربېره په پکتیا، هلمند او کندهار کې هم فعال وو. پردې سربېره یو شمېر وړوکې شیعه ډلې هم وې، چې ځینو یې له ایران سره اړیکې درلودې، د هغو لومړی ګروپ حزب الله ؤ، چې له ایران سره یې د افغانستان یووالی غوښت. د دوی د جګړه مارو شمېر ۴۵۰۰تنه ؤ او په لویدیز افغانستان کې فعال ؤ، له ایران سره د اړیکو او یووالي بل ګروپ د سپاه پاسداران ؤ چې مشر یې محسن رضا نومید. هغه د ایران ملاتړ درلود او د غړیو شمېر یې له ۳-۸زرو تنو پورې ؤ. په هرات، هلمند، جوزجان او بامیان کې یې مرکزونه فعال وو.

دریېم شیعه ګروپ د (شورا) ؤ چې مشر یې سید علي بهشتي ؤ، هغه غوښتل چې د افغانستان په مرکزي برخه کې هزاره ګان خود مختاره شي، له خپلو څلورو-اتو زرو جنګیالیو پورې دوی په بلخ، بغلان، بامیان او غزني کې فعال وو. څلورم ګروپ حرکت اسلامي ؤ، دوی هم غوښتل افغانستان بنسټپال اسلامي هیواد شي، شیخ آصف محسني یې مشر ؤ او ۱۲زره چریکان یې درلودل، دوی په بدخشان، بلخ، جوزجان او فاریاب کې فعالیت درلود.

د اوو واړو ګوندونو ترمنځ دهمکارۍ فضا ډېره پیکه وه، د دوی ترمنځ قبیلوي تړاوونه، د اسلامي عقایدو بېلابېل ډولونه او بېلابېل ټولنیز شالید له یو بل سره د اختلاف ستر لاملونه وو، بیا هم دوی د ۱۹۸۵ز په مې کې یو اتحاد وکړ چې د جګړې تر پایته رسیدو پورې ټینګ پاتې شو.

د اوو واړو ګوندونو په منځ کې خپلمنځي اختلافونه هم وو، او د دوی د مرکز او لویو قوماندانو ترمنځ هم چې ډېر نفوذ يې درلود اړيکې ښې نه وې.

*　　　　*　　　　*　　　　*

د ۱۹۸۰ز په پيل کې د افغان جګړې د جنګياليو راټولولو لپاره، د (مکتبه الخدمت المجاهدين) په نامه يو تنظيم جوړ شو، دغه تنظيم د سعودي تبعه اسامه بن لادن جوړ کړ چې د يوه لوی ودانيز شرکت د مالک زوی ؤ، اسامه د سعودي عربستان د شاهي کورنۍ ملاتړ هم له ځان سره درلود، د دې تنظيم په جوړولو کې سعودي نژاده د اردن د پوهنتون د شرعي قانون استاذ شيخ عبدالله عزام هم مرسته وکړه، د مکتبه دفترونه په ټوله نړۍ کې پرانيستل شول، اسامه بن لادن په سوډان کې هم څو کمپونه جوړ کړل. داوطلب مجاهدين به يې پخوا تر دې چې د يمن له لارې پاکستان ته وليږي، په دې کمپونو کې به راټوليدل. پردې سربېره اسامه په ټوله نړۍ کې د مجاهدينو لپاره د بسپنې راټولولو تر ټولو لويه وسيله ؤ. د ګومارلو کار په امريکا کې هم روان ؤ، هلته دا دنده بېلابېلو اسلامي ادارو سرته رسوله. په هغو کې مشهورې، الکفاة الافغان، رېفيوجي سنټر، د برو کلين جهاد سنټر چې په نيويارک کې ؤ، رابطه عالم اسلامي او تبيليغي جماعت غوندې تنظيمونو له دوی سره مالي مرستې کولې.

يو بل تنظيم چې رضا کار مجاهدين يې ګومارل تبليغي جماعت ؤ، چې د ۱۹۸۰ز د لسيزې په نيمايي کې يې په شمالي افريقا او اروپا کې مجاهدين راټولول، د دې ډلې مشر او بنسټګر يو مبلغ مولانا محمد الياس ؤ. مرکز يې په پاکستان کې ؤ او څانګې يې بيا په ټوله نړۍ کې فعالې وې، د (سپېڅلې

**جګړې) لیکوال جان کولي په اند دوی د مجاهدینو راټولولو او کار له تونس څخه پیل کړ. (تبلیغي جماعت چې مرکز یې د لاهور په رایونډ کې دی، اصولاً د تبلیغ چارو ته زیات ارزښت ورکوي، وسله وال جهاد یې په لومړیتوبونو کې نه دی. ژباړن)**

**له هغه ځایه یې له تعلیمي مدرسو څخه ۱٦۰تنه مجاهدین د شپږو اونیو مذهبي زده کړو لپاره پاکستان ته واستول. د دې زده کړو له بشپړیدو وروسته یې د آی اس آی له چارواکیو سره د ملاقات زمینه برابره شوه، هغوی اویا تنه ترې انتخاب کړل او د آی اس آی پټو روزنیزو کمپونو ته یې واستول. په الجزایز کې چې د کورنۍ ناکرارۍ سخته ځپه حاکمه وه، تبلیغي ډلې له پوځه تښتیدلي درې زره کسان وګومارل، په اروپا کې اخوان المسلمون غوندې توند لارو ګوندونو له دوی سره مرسته وکړه، چې څانګې یې په فرانسه او المان کې خپرې وې.**

**په ۱۹۸۰ز کې د افغان مجاهدینو د یو موټي کولو هڅې وشوې، په جنوري او فیبروري میاشتو کې د کابل د سترې محکمې د یوه پخواني قاضي محمد عمر ببرکزي په مشرۍ د پښتنو قومي مشرانو یو شمېر غونډې جوړې شوې، د مې پر ۱۱مه یې پېښور ته نږدې یوه پوځي شورا راوبلله، چې په هغو کې د افغانستان له هر ګوټ څخه د پښتنو او غیر پښتنو قومونو ۹۱٦تنو برخه درلوده. تر اوسه پورې پاکستانیانو په تېره آی اس آی او د مجاهدینو اوه ګوني اتحاد د واحد جهادي غورځنګ جوړولو ته لیوالتیا نه درلوده، دغې پوځي شورا چې د افغانستان د ټولو قومونو استازي پکې شامل وو، دا غوښتنه وکړه چې یو سیاسي او د قوماندې مرکز جوړ شي، وروسته به د**

جلاوطن حکومت جوړیدو ته زمینه برابره شي، د خطر زنګ ووهل شو، پوځي شورا یو سل کسیز قومي کمیسیون جوړ کړ، چې ۵۱غړي یې د ولایاتو دننه استازیو او ۴۹یې په پاکستان کې دننه مشرانو څخه وټاکل چې د اوه ګوني اتحاد له غړیو څخه به غوره کیدل، دوی غوښتنه وکړه چې د جګړې قوماندانان به تر دې وروسته د قومي مشرانو لخوا غوره کیږي، دوی دا غوښتنه هم وکړه چې د شوروي اتحاد د پوځونو له وتلو وروسته به افغانستان یو مرکزي نظام لري، چې قبایلي سیمې به پکې خود مختاره وي، دې جرګې توندلاري نظریات رد کړل او د یوه اسلامي نظام غوښتنه یې وکړه چې فکري او عقیدوي اختلافونه پکې نه وي، او بهرنی پالیسي به یې بې طرفي ساتل وي.

پردې پاکستان ته لویه اندېښنه پیدا شوه، دوی دغه جرګه اوه ګوني اتحاد ته لوی ګواښ باله، پاکستان غوښتل چې د اوه ګوني اتحاد په واسطه جهادي غورځنګ تیت او پرک وي او په دې ډول د پښتونستان مساله پر سیاسي اجنډا رامطرح نشي، ځکه خو آی اس آی ته دا دنده وسپارل شوه چې په دې جرګه کې اختلافونه راپیدا کړي تر څو جرګه له منځه لاړه شي، دغه مهال هغوی درې منځلارو ګروپونو ته د وسلو او پیسو نه ورکولو ګواښ وکړ، چې پر همدې ګواښ هغه درې واړه له جرګې ووتل. د ۱۹۸۰ز په وروستیو کې دغه جرګه نوره ختمه شوې وه، د دې پایله دا وه چې جهادي غورځنګ د جګړې په ټول دوران کې کومه مناسبه تګلاره عملي نکړای شوه، نه یې د کابل د حکومت پر وړاندې کوم اغیزمن سیاسي بدیل وړاندې کړای شوه

*　　　　*　　　　*　　　　*

د ۱۹۸۰ز په جنوري کې بريژنسکي پاکستان ته راغی او له جنرال ضياءالحق سره يې وکتل، ضياء ټينګار کاوه چې مجاهدينو ته بايد وسلې او پيسې د پاکستان له لارې ورسول شي. هغه درې نور شرطونه هم کېښودل، لومړی دا چې بوديجه ورکوونکي ټول هيوادونه بايد دغه راز وساتي، که په دې اړه په اخبارونو کې کوم راپور خپرېږي دوی يې بايد په کلکه رد کړي، دوهم شرط دا چې د مرستې سامان بايد ډېر ګړندی پاکستان ته راورسول شي، درېيم يې دا چې هره اونۍ بايد دوه ځله د مرستې سامان را ورسيږي.

د امريکا لپاره دغه غوښتنې د منلو وړ وې، ځکه دوی هم غوښتل چې په دې عملياتو کې بايد د دوی د لاس درلودو شواهد ډېر پټ پاتې شي، د مجاهدينو لپاره د وسلو لومړی بار د همدې کال په جنوري کې پاکستان ته ورسيد.

بريژنسکي بيا مصر ته لاړ، هلته يې له انورالسادات څخه وغوښتل چې له خپلو پوځي زيرمو څخه روسي ساخت وسلې مجاهدينو ته چمتو کړي، سادات دغه غوښتنه ومنله او څو اونۍ وروسته امريکايي الوتکو کيناس او اسوان مصري هوايي ډګرونو ته الوتنې پيل کړې چې د وسلو بارونه انتقال کړي. دغه وسلې د الوتکو په واسطه پاکستان ته وړل کيدې، هلته به آی اس آی ته سپارل کيدې او د پينډۍ او جړې کمپ ته به رسول کيدې، له هغه ځايه به پر مجاهدينو ويشل کيدې، روسي وسلې ناقصې وې، ځکه خو پر ۱۹۸۰ز مصر د ۱۹۷۵ز د مهال جوړې کړې کارخانې فعالې کړې، هلته

يې روسي ماډل سپکې وسلې او له ځمکې نه ځمکې ته د لنډ واټن توغندي په ځايي کچه توليد کړل. دا د (عرب آرګنايزيشن فار انډسټريلايزيشن) يعنې د عربو صنعتکارانو تنظيم په نامه د سعودي عربستان، مصر، متحده عربي اماراتو او قطر شريک پروګرام ؤ، چې ۱٫۰۴ مليارد ډالره پانګونه يې پرې کړې وه. د ۱۹۷۹ز په جولای کې دغه پروګرام بند شو، ځکه چې له اسرائيلو سره د مصر د مخ پر زياتيدونکيو اړيکو پر خلاف سعودي عرب، متحده عربي امارت، او قطر د احتجاج په دود له دې ارګان څخه ووتل، تر دې وروسته د امريکا په پانګونه او فني همکارۍ دغه پروګرام بيا پيل شو، او د ۱۹۸۰ز تر پايه د روسي ماډل وسلو کاپي دلته توليد شوې.

مجاهدينو له ځمکې نه فضا ته داسې ويشتونکيو توغنديو ته اړتيا درلوده چې، يو سړی يې په اوږه ورسره يووړای شي، تر څو د افغان حکومت او شوروي پوځ د هوايي ځواک الوتکې، په تيره هليکوپترې وويشلای شي، د (سکر)توغنديو په کارخانه کې د (ګريل سام۷) ماډل له ځمکې نه فضا ته ويشتونکي توغندي هم جوړ شول، خو دا او يو ډول چينايي توغندي اغيزمن ثابت نه شول، ځکه چې د ټولو شرايطو پر پوره کولو بيا هم له لسو څخه يوازې يوه هدف ويشتلای شوای. سي آی اې چې د دې توغنديو پر بديل فکر وکړ هغه امريکايي (ريډ آی) نومی توغندی ؤ چې د ۱۹۶۰په لسيزه کې امريکايي پوځ ترې کار واخيست، ځکه خو څو درجنه دغه توغندي پاکستان ته واستول شول. د ۱۹۸۰ز په وروستيو کې چې تجربه کړای شول ډېر بد ناکام ثابت شول.

## د سي آی اې پټې جګړې

د همدې کال په پیل کې د امریکا په بېلابېلو پوځي مرکزونو کې چې، فورات براګ، شمالي کیرولینا او جان ایف کینیډي مرکزونه هم پکې شامل وو، د پاکستاني پوځیانو روزنه پیل شوې وه، په دې کې پې هل بندر او پیلیټ کمپ مرکز هم شامل وو، چې دلته د ترپ او خرپ جګړې او بېرته ستنیدو روزنه ورکول کیده، په ورجینیا کې ولیمز برګ ته نږدې، د سي آی اې اډه (پیري کمپ) هم د روزنې یو مرکز ؤ، دلته د پټو عملیاتو طریقې ور ښودل کیدې.

د پاکستان غوره شویو منصبدرانو ته چې ځینو یې د پاکستان د خاصو ځواکونو، خاص علمیاتي ګروپ(اېس اېس جي) سره تړاو درلود، وسلې، چاودیدونکي مواد، تخریبول، سبوتاژ، مخابراتي اړیکې، روغتیایي مرستې، چریکي جګړه او د دښمن د قوماندانو او مشرانو د وژلو، ښه روزنه ورکړای شوه. په(پیري کمپ) کې دوی ته د جاسوسي معلوماتو راټولول، ساتل، ځوابي جاسوسي، راپور لیکنه، د ایجنټانو او قاصدانو ګومارل او نورو جاسوسي تخنیکونو ځانګړې روزنه ورکړل شوه.

د شوروي اتحاد پر خلاف د اتحاد او یووالي لپاره، د پاکستان او مصر د ملاتړ له تر لاسه کولو وروسته د کارتر حکومت چین ته مخه کړه، له ۱۹۷۱ز څخه چې د امریکا د ملي امنیت سلاکار هنري کیسینجر چین ته پټ سفر کړی ؤ، په پایله کې یې د امریکا ولسمشر نکسن ته د ۱۹۷۲ز په فبرورۍ کې چین ته د رسمي سفر زمینه برابره کړه، د امریکا او چین تر منځ په کرار کرار تفاهم زیاتیده. د ۱۹۸۰ز د جنوري پر ۴مه د امریکا د دفاع وزیر هیرالډبراون، د چین له صدراعظم ډینګ ژیاوپېنګ او نورو

حکومتي چارواکيو سره د خبرو اترو لپاره پيکنګ(بېجنګ) ته ورسيد. د هغه هيله د شوروي اتحاد پر خلاف د ملاتړ ترلاسه کول وو، په بدل کې يې چين ته د غوره او خوښ کړای شوي هيواد او يو لړ تيکنالوژيکو همکاريو برابرولو وړانديز ؤ چې ظاهراً په ملکي خدماتو کې کاريږي خو په آسانه په پوځي برخو کې کارول کيدای شي، ډينګ ژياوپينګ او نورو چينايي چارواکيو د براون وړانديز ومانه، او دې ته چمتو شول چې مجاهدينو ته وسلې برابرې کړي، مجاهدينو ته د وسلو لومړی بار د براون له سفره يوه مياشت وروسته ورسيد، چې امريکايي الوتکو پاکستان ته ورساوه، په دې لومړي او نورو بارونو کې اسالټ ماډل ټوپکونه، ماشيندار، سپک توپونه او مرمۍ شاملې وې، څه موده وروسته راکټ لانچرونه هم د چين لخوا واستول شول.

وروسته دا آوازې خپرې شوې چې تصديق يې هېڅکله هم ونه شو، چې د وسلو بارونه پر ځمکنۍ لاره د سنکيانک له لارې افغانستان ته واستول شول، د سنکيانک وروستۍ څنډه چې ۴ميله سورروره او ۱۲۰ ميله اوږده ده، د افغانستان د واخان له غرنۍ سيمې سره نښتې ده، چې د تاجکستان او کشمير ترمنځ پروت دی. په واخان کې ۳۰۰۰ قرغيزيان قبايل ميشت دي، د ۱۹۸۰ز په پيل کې دوه زرو تنو روسي عسکرو دغه سيمه ونيوله، تر څو مجاهدين د چين له سرحد سره لاره پيدا نه کړي، وروسته بيا شوروي اتحاد واخان له خپلې خاورې سره يو ځای کړ، افغانستان د مسکو د فشارونو له امله دا په رسمي ډول دوی ته وسپاره. دلته يې په کلاؤ کې ايسارې پوځي چوڼۍ جوړې کړې چې د الوتکو او هليکوپټرو د کوزيدو

سیمې هم پکې وې، تر دې وروسته شوروي پوځیانو د افغان پوځیانو په مرسته قرغیزیان له دې سیمې پاکستان ته وشړل.
د چین له لوري بله ښکاره کاریدونکې لاره د قراقرم لویه لاره وه، چې سنکیانک له پاکستان سره نښلوي، دا د وریښمو د لارې یوه برخه ده، چې په پخوا زمانو کې یې چین د روم له امپراتورۍ سره نښلولی ؤ او د همدې لپاره جوړه شوې ده. څلور زره میله اوږده دغه لویه لاره د چین د شانسي له مرکز سیان څخه پیلیږي، په شمال لویدیز کې د چین له لوی دیوال سره موازي تللې او د پامیر له غرونو اوړي، له افغانستان څخه تیریږي او د لیونت په لور درومي. د قراقرم د لویې لارې د کارولو په اړه بېلابېل نظرونه دي، ځینې وایي چې وسلې له همدې لارې راتلې، خو ډګروال یوسف بیا وایي چې د قراقرم لویه لاره په لویه کچه د مجاهدینو لپاره د کچرو په واسطه د اکمالاتو لپاره په کار شوه.
د مې پر ۲۵مه د چین د صدارعظم مرستیال، او د چین د کمونیست ګوند د پوځي کومیټې منشي ژنګ بیاو، د دوو اونیو لپاره د امریکا په سفر ولاړ، په دې رسمي سفر کې اعلان وشو چې امریکا به پر چین الوتکې او د فضایي دفاع رادار وپلوري، په همدې کال په سپتمبر کې د امریکا یوه پوځي پلاوي بیجنګ ته سفر وکړ، چې له هغو څخه سمدستي وروسته یوه چینایي پلاوي امریکا ته سفر وکړ، د دواړو هیوادونو ترمنځ دغه د ګړندي تفاهم څه پټې نورې ګټې هم وې، چې په هغو کې تر ټولو زیاتې د یادونې وړ د سنکیانک په شمال ختیځ او مابین کې په قطایي او کورلا سیمو کې د دوو (ایلنټ) د څارنې پوستو جوړول هم وو، چې دا په ۱۹۷۹ز کې په ایران کې د څارنې د

له منځه تللیو چوڼیو ښه بدیل او جبران ؤ، دغسې پوستې او مرکزونه د شوروي اتحاد دننه د پوځي خوځښتونو او لیږد رالیږد د څارنې لپاره امریکا ته ډېر مهم وو.

د ایران له انقلاب وروسته امریکا په ترکیه کې پر دغسې د څارنې پر پوستو انحصار کاوه، خو پر ۱۹۷۰ز کې پر قبرص د ترکیې د برید له امله دغسې پوستې د لنډ مهال لپاره بندې کړای شوې، پردې سربېره امریکا پر ترکیه پوځي مرستې هم بندې کړې وې چې پر ۱۹۷۸ز دغه بندیزونه لرې کړای شول، که څه هم د ترکیې د څارنې مرکزونه بېرته پرانیستل شول، خو د هغو زیات دوام شکمن شوی ؤ، په ځانګړي ډول له دې لامله چې ترکیې دغه مرکزونه د مرستو د تر لاسه کولو لپاره فعال کړل، ځکه خو په چین کې د داسې مرکزونو د پرانیستلو اجازه ډېره مهمه وه، په دغو مرکزونو (پوستو) کې امریکا په (سګنت) کې ماهر چینایان وګومارل او هغه به یې د سي آی اې د ساینس او ټکنالوجي د څانګې په لار ښونه چلول، د دواړو موخه یوه وه، یعنې په افغانستان او شوروي اتحاد کې د شوروي پوځونو جاسوسي.

* * * *

مجاهدینو ته له نورو لارو هم د وسلو رسیدل پیل شول، د ۱۹۸۰ز تر پایه، په دې کې هغه وسلې هم شاملې وې، چې د پېښور په شاوخوا کې د روس، پولنډ او نورو هیوادونو وسلو ته ورته جوړیدې. (د آدم خېلو دره د دغه ډول وسلو جوړولو مرکز ؤ، او دوی په دومره مهارت دغه کار کاوه چې نابلده سړي ته د اصیل او کچه توپیر ګران ؤ. ژباړن)

په دې کچه وسلو کې آن د روسي سام ۷ډوله توغندي هم شامل وو چې له اوړې ویشتل کیږي، که څه هم دا د مصري او چینایي توغندیو په څېر لږ اغیزمن وو، یوه بله سرچینه په افغانستان کې پخپله یرغلګر روسي پوځونه وو، په کابل کې د ۴۰مې فرقې په قرارګاه کې د لوژیستیکي خدماتو یوه منصبدار نیغ په نیغه پر مجاهدینو وسلې پلورلې.(د وسلو پلورل په روسي عسکرو کې ډېر عام وو، دوی معمولاً په چرسو او نورو نیشه یي توکیو، په جاپاني ګړیو او نورو شیانو په بدل کې وسلې او کارتوس پلورل. ژباړن)

په ۱۹۸۳ز کې د روسیې جوړو شویو وسلو ډېر بارونه، له امریکا نه پاکستان ته روان شول، دغه وسله له اسرائیلو څخه پیرل شوې وه، هغوی له لبنان څخه د فلسطین د آزادۍ سازمان د ایستلو پر وخت لاسته راوړې وه، دغه وسله د اسرائیلو په کار نه وه، ځکه چې دوی یا امریکایي وسلې کارولې او یا یې پخپله جوړولې. اسرائیلو دغه وسلې امریکا ته دF4 الوتکو او نورو وسلو په بدل کې ورکړې، د امریکا په دفاع وزارت کې د نړیوال امنیت د برخې، نږدې ختیځ، افریقا او جنوبي آسیا لپاره مرستیال، تورنجنرال ریچارډ سیکارډ، د وسلو د تبادلې د پروګرام مسوول وټاکل شو، وسله به له لبنان څخه د شمالي کیرولینا ولمنګټن ته استول کیده، له هغه ځایه د سرک له لارې په تکزاس کې د سي آی اې یوه پټ ګودام ته رسیدله، وروسته به ترمیم او معاینه کیدله، سریال نومرې به یې ترې پاکیدلې، ځینې وسلې به سي آی اې د خپل استعمال لپاره پرېښودې، نورې به یې یوه برخه د منځنۍ

امریکا د نیکاراګوا کونټرا یاغیانو ته استولې او بله به یې پاکستان ته لیږلې چې آی اس آی ته ورسیږي.

د وسلو له دې بارونو پرته، چې له امریکا او یا سعودي څخه به د پاکستان په چکلاله هوایي ډګر کې راښکته کیدل، نوره ټوله وسله د سمندر له لارې د کراچۍ بندر ته راتله، له هغه ځایه به د وسله والو ساتونکیو لخوا په ریل ګاډي کې د آی اس آی په مرکز کې او جړې کمپ ته راتله، ځینې وختونه به یوه برخه نیغ په نیغه کوټې ته استول کیده، راولپنډۍ ته له رسیدو وروسته به دغه وسله د آی اس آی په ښاري لاریو کې باریدله او پېښور ته به وړل کیده او د مجاهدینو د بېلابېلو ډلو ګودامونو ته به رسیدله، له دغو ګودامونو څخه به بیا منظمه په ټرکونو کې باریدله په قبایلي سیمو کې د مجاهدینو مرکزونو ته به رسول کیده.

له دې ځایه به مجاهدینو دغه وسلې په کچرو او یابوګانو بارولې او د افغانستان دننه مرکزونو ته به یې رسولې، افغانستان ته د تلو لپاره معمولاً شپږ لارې کارول کیدې. تر ټولو شمال لوري ته لاره یوازې له جون څخه تر اکتوبر میاشتې پورې کارول کیدای شوای، نورې اته میاشتې به د واورو اوریدو له امله تړلې وه، دغه لاره له چترال نه پیل شوې او له هندوکش نه تېرېده پنجشېر درې، فیض آباد او د افغانستان شمال ته تللې وه.

تر ټولو زیاته د تګ راتګ لاره له پاړه چناره پیل کیده تر برید پورې غاړه له علي خېلو تېریده او د لوګر ختیځ ولایت ته تللې وه. هلته په دوو لارو ویشل کیده، یوه کابل او بله د شمال له غرونو تېره شوې وه او د مزار شریف

تر دښتو پورې غځېدلې وه. يوه بله لاره له ميرانشاه نه د ژورې له لارې هم لوګر ته تللې وه او هم له هغه ځايه غزني او جنوبي ولايتونو ته تېره وه.

د بلوچستان مرکز کوټه د څلورمې لارې پيل ؤ، چې له چمن نه تېريدله، په شمال لويديز دښتو کې تېريده، کندهار او ورسره اړوندو نورو ولاياتو ته تېره شوې وه، پينځمه لاره له هغه ځايه ۲۵۰ ميله لويديز ته د هلمند ولايت په بريد کې د ګردي ځنګل له اډې څخه پيلېده، نيمروز، فراه او هرات ته تللې وه، ځکه خو دلته د کچرو پر ځای په لاريو کې وسلې وړل کيدې، ځکه چې له هوايي بريدونو څخه د ژغورنې لپاره دې ته اړتيا وه چې ګړندۍ لاره لنډه شي.

شپږمه لاره تر ټولو اوږده وه، کاروانونو به د بلوچستان په سرحد کې مزل کاوه او د ايران له پولې به تېرېدل، هلته به يې د ايران او افغانستان پر بريد مزله ته دوام ورکاوه او د افغانستان لويديزو ولايتو ته رسيدل، له هغه ځايه دغه لاره هم په دوو لارو ويشل کيده.

په پاکستان کې له هستوګنو اوو ګوندونو څخه د پاکستان او آی اس آی ډېر د خوښې ګوند د ګلبدين حکمتيار په مشرۍ حزب اسلامي ؤ، دې ګوند ته د سي آی اې د وسلو او پيسو نيمايي برخه رسيدله، ډګروال يوسف په خپل اثر (د يږې تلک) کې دا منلې ده چې ۷۳ سلنه وسلې او مرستې څلورو بنسټپالو ګوندونو ته ورکول کيدې، پردې سي آی اې ناراضه وه، ځکه چې دوی د پير ګيلاني په مشرۍ ملي اسلامي محاذ او د صبغت الله مجددي، نجات جبهه سنتپال او منځلاري ګوندونه خوښول، خو د دې نا انډولۍ د مخنيوي هيڅ هڅه هم ونه شوه، ځکه چې پاکستان ته د وسلو د

ویش واک ورکړای شوی ؤ. د ډګروال یوسف په قول آی اس آی وسلې سوچه پردې بنسټ وېشلې چې بنسټپال ګوندونه په پوځي ډګر کې ډېر فعال وو، خو نور سیاسي شناندي او د وضعې عیني شاهدان بیا په دې نظر دي چې د سي آی اې دغه مرستې پر څلورو بنسټپالو ګوندونو، یوازې د آی اس آی او جنرال ضیاءالحق د سیاسي اجنډا له مخې ویشل کیدې.

* * * *

د ډګروال یوسف په قول، د ۱۹۸۰ز په نیمایي کې آی اس آی د مجاهدینو د پوځي روزنې لپاره دوه کمپونه جوړ کړل، په یوه کې د دوه سوه تنو د اوسیدو زمینه وه، یو په پېښور کې او بل کوټې ته نږدې ؤ. دواړه کمپونه په پټ ځای کې وو چې چریکان به د شپې په تیاره کې هلته راوستل کیدل، دلته د آی اس آی هغه مامورین ګومارل شوي وو چې په امریکا کې یې روزنه لیدلې وه. په دې کمپونو کې معمولاً د دوو دوو اونیو لپاره د بېلابېلو وسلو روزنه ورکول کیده، په دې کې د بېلابېلو توپونو، د زغره والو وسایلو او الوتکو د ویشتلو د وسلو کارول، تخریب کاري، چې د نل لیکې، د بریښنایي مزیو او پلونو غورځول، د ماینونو اېښودل او د هغو د پاکولو طریقي زده کول شامل وو.

د مجاهدینو روزل ډېر ستونزمن کار ؤ، ځکه چې یوه ګروپ هم نه غوښتل چې د بل ګروپ د مجاهدینو سره په ګډه زده کړې وکړي، پردې سربېره جهادي قوماندانانو د خپلې اړتیا او خوښې وړ روزنې غوښتنه کوله، د دې کمپونو د راز ساتل هم یوه مساله وه، ځکه چې په کمپ کې به دډزو غږونه اوریدل کیدل، او تر یو ځل زیات کمپونه بل ځای ته ولیږدول شول.

د راتلونکیو کلونو په بهیر کې آی اس آی روزنیزې آسانتیاوې دومره پراخه کړې، چې د ۱۹۸۴ز کال په اوږدو کې یې په یوه میاشت کې زر تنه چریکانو ته روزنه ورکوله، د لازیاتو وسایلو د لاسته راوړلو له لامله یې په ۱۹۸۵ز کې ۱۷ نیم زره چریکان او په ۱۹۸٦ز کې یې ۱۹ زره چریکان وروزل، په ۱۹۷۸ز کې یې د روزنې د کمپونو شمېر ۷ته رسیدلی ؤ، څلور یې د پېښور په سیمه کې او درې یې د کوټې په اطرافو کې وو. تر ۱۹۸۸ز پورې ۸۸زره تنو مجاهدینو دغه روزنه تر لاسه کړې وه.
په ۱۹۸۱ز کې او تر دې وروسته، آی اس آی په جګړه کې د زیات رول درلودو هڅې پیل کړې، دوی افغانستان ته د درې کسیزو عملیاتي ګروپونو استول پیل کړل. معمولاً به یې د کوم پوځي منصبدار په مشرۍ ګروپ ته د ځانګړي ماموریت سرته رسولو دنده ورسپارله. قوماندان به د مجاهدینو یو ګروپ غوره کاوه چې د ټیم تر څارنې لاندې به روزل کیدل، بیا به یې ماموریت ته استول. دې ګروپونو به هماغه رول ادا کاوه چې په عمان کې د امریکا د خاصو ځواکونو (اس اې اس) غونډ له لوري استول شویو (بي اي ټي ټي) ټیمونو ادا کاوه، د مجاهدینو په څېره کې دې ټیمونو تر څو اونیو پورې روان ماموریت سرته رساوه، په دې موده کې به د دوی اړیکې له مرکز سره شلېدلې وې. ځکه چې د مخابروي اړیکې له لامله دښمن د دوی د فعالیت له ځای او سمت څخه خبر نه شي، دوی ته یې مخابرې هم نه ورکولې، تر ۱۹۴۸ز پورې، آی اس آی ۷ټیمونه د کابل سیمې ته، دوه د بګرام هوایي ډګر ته او دوه په جلال آباد کې وګومارل.

## د سي آی اې پټې جګړې

له پیله د مجاهدینو د مرستې دغه ټول لګښتونه په ډراماتیک ډول زیاتیدل، د ۱۹۸۰ز په بهیر کې بودیجه سي آی اې چمتو کوله چې ۳۰ ملیونه ډالره یې کانګرس ورته منظور کړل، پردې سربېره سعودي عرب او له نورو لارو یې ۴۵ ملیون ډالره تر لاسه کړل، راتلونکی کال یوازې د سي آی اې برخه ۵۰ ملیون ډالره شوې وه.

د ۱۹۸۱ز په پیل کې رونالډ ریګان د امریکا ولسمشر شو، د هغه د سي آی اې مشر ویلم کیسي ؤ چې د جګړې پر مهال یې له سي آی اې څخه په مخکینۍ اداري د ستراتژیکو خدماتو دفتر(او اس اس) کې خدمتونه کړي وو.

د خپل پخواني مشر په څېر ویلیم کیسي نه کومې اندېښنې درلودې او نه کومه ویره، ځکه خو یې د دندې له پیل سره، عملیات او د غوره وسلو او سامان استولو د پراختیا هڅې پیل کړې. د ۱۹۸۱ز د اپریل په میاشت کې یې د سعودي د مرستو د زیاتولو په منظور دې هیواد ته سفر وکړ، هغه د ولسمشر ریګان لخوا سعودي ته د پرمختللي رادارسیستم کشفي او کنترول (آواکس) الوتکو د پلورلو وړاندیز وکړ، او د دوی زړه نا زړه توب یې ختم کړ. د دې کال په پای کې د ۸۱-۱۹۸۲ز مودې لپاره یې د سعودي عربستان د مرستې اندازه ۸۰ ملیون ډالرو ته ورسوله.

د افغان ماموریت په اړه د کیسې په جذبو او احساساتو کې یو شمیر امریکایي سیاستوال هم شریک وو چې هغوی ځانونه د مجاهدینو او افغان پټې جګړې د ملاتړ لپاره وقف کړي وو. په دوی کې جمهوریت غوښتونکی سناتور ګورډن همفري، په کانګرس کې د دیموکراتیک ګوند غړی چارلس

ولسن او د جمهوریت غوښتونکیو د کانګرس غړي ډیویډ ډرېیر او بل مک کولم شامل وو.

په ۱۹۸۴ز کې ولسن چې پردې یې اعتراف کړی ؤ چې پرده له روسانو څخه په ویتنام کې د ۵۸زره تنو امریکایانو د وژلو د کسات جنون سپور دی، له کیسي سره یې نږدې اړیکې ټینګې کړې، دواړو په ګډه د افغانستان په عملیاتو او جګړو کې برخه درلوده، د همدې کال په اوږدو کې هغه د کانګرس د بودیجې د ټاکلو په کومیټه کې چې دی یې هم غړی ؤ، دا کمپاین وچلاوه چې د افغانستان لپاره په بودیجه کې ۴۰ ملیون ډالره زیات شي، دغه پیسې به د دفاع وزارت له (تورې بودیجې) څخه ورکول کیدې، چې د پټو ماموریتونو لپاره به پیسې ترې ځانګړې کیدې. د افغان جګړې لپاره چې کومې پیسې بېلې شوې، د هغو شمېر او حساب او کتاب نشته، خو د حجم اټکل یې له دې حقیقت څخه کولای شو چې د (تورې بودیجې) کلنۍ پیسې چې تر ۱۹۸۰ز کال پورې تر ټولو زیات ۹ ملیارډه ډالره ؤ پر ۱۹۸۱ز او له هغه وروسته دغه بودجه ټوله ۳٦ملیارد ډالره ته ورسیده.

د وسلو په څېر د آی اس آی تر څارنې لاندې، او د عربي هیوادونو څخه تر لاسه کیدونکې مرستې هم لویه برخه هغو څلورو بنسټپالو ډلو ته ورکول کیدې، د سعودي عرب زیاتې مرستې د اتحاد اسلامي په مشرۍ عبدالرب رسول سیاف ته ورکول کیدې.

* * * *

د وسلو د پیرلو لپاره د پیسو پر برابرولو سربېره، سي آی اې، آی اس آی ته میاشت پر میاشت نورې پیسې هم ورکولې، د مجاهدینو هرې ډلې ته د

دوی د کمپونو او مرکزونو د ادارې او انتظام نه پرته، د دوی د مامورینو تنخواوې، د ډیپوګانو لګښتونه، او د آی اس آی لخوا به چې کوم د اړتیا وړ سامان چمتو نه شو مثلاً جامې، خوراکي شیان او وسلې، د هغو د پیرلو لپاره او له مرکز نه سرحدي سیمو او دننه افغانستان ته د وسلو او نورو وسایلو د لیږدولو لپاره چې کومو پیسو ته اړتیا وه، هغه له دې پیسو څخه ورکول کیدې. د وسلو لیږدولو تر ټولو ډېر لګښت درلود، ځکه چې د موټرو چمتو کوونکیو قراردادیانو غوښتل چې هر څومره وکولای شي زیاتې پیسې لاسته راوړي. د ډګروال یوسف په قول تر مزار شریف پورې د یوه ۷۵ ملي متري توپ لیږدولو تر ۱۱ سوه ډالره لګښت درلوده چې د هرې مرمۍ لپاره یې ٦۵ ډالره کرایه ادا کیدله. ځکه خو یوازې د دې لیږدولو میاشتنی لګښت ۱۵ لکه ډالره ؤ، پردې لګښتونو سربېره د نړۍ له هر ګوټ څخه نړیوالو سازمانونو او مسلمانو وګړو هم له دغو څلورو بنسټپالو ګوندونو سره بسپنې کولې، چې دغه بهیر د آی اس آی له امتیازي چلن سره په ګډه د منځلارو ګوندونو د کمزورۍ سبب کیدو، دوی د خپلې بې وسۍ له لامله لوی پوځي عملیات نشوای کولای، په دې ډول آی اس آی، د سي آی اې په وړاندې، د بنسټ پالو ډلو په زیات اکمال کې حق په جانب ښکاریدو.

پر ۱۹۸۷ز کې چې کله د مجاهدینو لپاره د نړیوالو مرستو اندازه د میاشتې ٦۳۰ ملیون ډالرو ته ورسیده، امریکا ته شک پیدا شو چې په دې وسلو او پیسو کې خورد او بُرد کیږي، په دې لړ کې ګوته هغو لوریو ته ونیول شوه چې په پاکستان کې د مجاهدینو د اکمالاتو مسوولیت هغوی ته سپارل شوی ؤ، په ځینو راپورونو کې دا تور لګول شوی دی چې د اکمالاتو له ۸۰

تر ۸۵ سلنه پورې برخه پاکستانی منصبدارانو خوړلې دي. پر همدغه کال د فبروري په پای کې له پنسلوانیا څخه د دیموکراتیک ګوند غړي ویلم ایچ ګیري غوښتنه وکړه چې د امریکا د عمومي احتساب اداره (جي اې او) دې، د دې پلټنه وکړي چې د سي آی اې له لوري مجاهدینو ته په پټو مرستو کې خو به درغلي او خیانت نه کیږي. دې ادارې پلټنې پیل کړې، خو سي آی اې او د کانګرس د استخباراتو کومیټې د خپلو دوسیو له سپړلو څخه انکار وکړ، چې له همدې لامله دغه پلټنې هم ودرول شوې.

جیمز جي شاوټ، چې دوه ځله یې افغانستان ته سفرونه کړي دي، د پیر ګیلاني د ګوند له مجاهدینو سره یې ځو میاشتې تېرې کړې دي. نوموړی وایي چې د دې ډلې او نورو ډلو مهمو غړیو دا شکایت درلود چې د پاکستان چارواکي له دغو مرستو څخه خورد او بُرد کوي، د (سپیشل فورس) رسالې د اګسټ په ګنه شارټ په خپل مضمون کې ولیکل چې ده د امریکا له لوري مجاهدینو ته د مرستې ټوکر او نور سامانونه د پېښور په دوکانونو کې لیدلي دي چې پلورل کیدل، هغه مهال دغه کیسه ډېره عامه وه چې کوم مجاهد به له روغتون نه ناروغ راستون شو، نو ورته ویل به یې چې پاکستانیانو یوازې دده جیب نه دی وهلی، بلکې د ده روغتیا یې هم ترې غلا کړې ده. (د افغان جهاد پر پیسو نه یوازې دا چې د پاکستان پوځ په نویو وسلو سنبال شو، او دغه هېواد بېساری پرمختګ وکړ بلکې وروسته معلومه شوه چې د پاکستان جنرالان تر ټولو ډېرې شتمنۍ او لوی کاروبار لري. د جنرال اختر عبدالرحمن او جنرال ضیاءالحق د زامنو شتمنۍ او جایداد یې بېلګې دي. ژباړن)

## د سي آی اې پټې جګړې

پر امریکا سربېره برتانیې هم له افغان جګړې سره دلچسپي درلوده، دوی له هغو معتدلو ګروپونو سره مرسته کوله چې د پخواني پاچا ظاهرشاه بېرته راستنیدل یې غوښتل، په هغو کې څرګند نوم د پیر ګیلاني ملي محاذ ؤ، چې د پوځ مشر یې ډګر جنرال رحمت الله صافی ؤ. د پروان ولایت اوسیدونکی رحمت الله صافی په افغان پوځ کې له شاملیدو مخکې د کابل په حربي پوهنتون کې زده کړې کړې وې. په ۱۹۵٦ز کې یې هغه شوروي اتحاد ته واستاوه، هلته یې درې کاله په غرنۍ سیمه کې د چریکي جګړې زده کړې وکړې، افغانستان ته چې بېرته راستون شو نو ۳۰م غرنی غونډ یې جوړ کړ، پر ۱۹٦۸ز کې یې امریکا ته د زده کړو لپاره واستاوه، له ۱۹۷۰-۱۹۷۳ز کې یې چې دی د ډګرمن رتبې ته رسیدلی ؤ، په برتانیه کې یې د ۲۲ اس اې اس په څواک کې روزنه ترلاسه کړه، چې بېرته ستون شو ۴۴۴م خاصو څواکونو قطعه یې جوړه کړه، چې تر ۱۹۷۸ز پورې د کمونیستي کودتا تر مهاله د همدې قطعې قوماندان ؤ، له کمونیستي کودتا وروسته بندي شو او ښه عذابونه یې ورکړل. له درې نیم کاله زندان وروسته یې په کور کې نظر بند کړ، وروسته بیا له افغانستانه وتښتید او ایټالیا ته لاړ. پر ۱۹۸۰ز د پیر ګیلاني په غوښتنه پاکستان ته راغی او د شوروي پوځ پر خلاف یې وسله راپورته کړه.

*   *   *   *

د ۱۹۸۰ز په پیل کې د برتانیې د پټو استخباراتو ادارې اس آی اس(اوسنۍ MI6) هم له سي آی اې سره مرسته پیل کړه، په دې اړه (د ارواو څواک) لیکوال کین کارنر یوه حواله ورکړې ده، چې ایس آی ایس دوه پخواني

جاسوسان وګومارل، او د شوروي اتحاد پر يوه هوايي ډګر يې د بريد لپاره چمتو کړل. دوی يې بيا د سي آی اې له چارواکيو سره معرفي کړل، پر هوايي ډګر د ميګ۲۱ ډوله ۲۴ وزره الوتکو تصوير يې ور وښود. دواړو دوې ورځې وروسته د مجاهدينو يوه ګروپ ته د بريد لپاره پلان جوړ کړ او ور يې کړ، چې د پلان له مخې مجاهدين هوايي ډګر ته ننوتل او د هرې الوتکې په لکۍ يې چاوديدونکي مواد وتړل او وايې لوزولې.

تر دې وړاندې کال اېس آی اېس يو ټيم د جمعيت اسلامي د مجاهدينو د روزلو لپاره افغانستان ته واستاوه، لومړی په پام کې وه چې دغه روزنه په پاکستان کې ورکړي. خو په ۱۹۸۲ز کې يې دغه کار په افغانستان کې دننه پيل کړ، د همدغسې يوه روزنيز ماموريت له ترسره کولو وروسته دغه ټيم بېرته راستنيدو چې د کابل په شمال کې د روسانو يوه ۹۰۰ کسيز غونډ پرې بريد پيل کړ، دغو پوځيانو د مجاهدينو جامې اغوستې وې چې دا په څرنګوالي کې نوې پېښه وه. د دې ټيم پر وسايلو بار کچرې مړې شوې او ټول سامان يې د روسانو په لاس ورغی، خو د ايس آی ايس کسان په تېښته بريالي شول، روسانو د دوی له سامانونو نه د دوی پاسپورټونه راوکښل او په خبري کنفرانس کې يې دا ثبوتونه وړاندې کړل چې برتانيه هم په افغان جګړه کې ښکيل ده.

له دې لامله چې کومې لانجې او پريشانۍ پيدا شوې، په پايله کې دروزنې دغه پروګرام برتانيې ته وليږدول شو.

پر ۱۹۸۳ز کې د احمد شاه مسعود د سر ګروپانو يوه ډله له پاکستان نه برتانيې ته واستول شوه، هلته يې د يوې سوداګريزې امنيتي کمپنۍ د

اداري تر اهتمام لاندې څو اونۍ پوځي روزنه تېره کړه. دغه کمپنۍ په جرسي جزیرو کې راجستر وه او دفترونه یې د لندن په لویدیځه برخه (کېنسېنګټن) کې وو، عمله او مامورین یې د برتانیې د پخواني خاص ګروپ منصبداران وو، د دې کمپنۍ درې تنو روزونکیو د افغانستان لپاره د ۱۲ میاشتو روزنیز پروګرام لپاره ۱٦۰ زره پونډه وغوښتل. دغه اداره له لسو کلونو راهیسې فعاله وه، په دې موده کې دوی د جنوبي امریکا، منځني ختیځ او جنوب ختیځې آسیا چریکي ګروپونه او خاص ځواکونه روزل. په برتانیه کې د جمعیت اسلامي سرګروپانو ته په شمالي انګلنډ او سکاټلنډ په درې ځایونو کې په بېلابېلو برخو کې د مهارت ترلاسه کولو روزنه ورکړای شوه.

د افغانستان د مرکز لویدیزو سیمو چریکانو له ایران څخه مرستې ترلاسه کولې، د ۱۹۸۵ز د جولای میاشتې کې د سي آی اې په یوه خپاره شوي راپور کې ویل شوي چې ایراني ملایان د ۱۹۷۹ز له اسلامي انقلاب وروسته هزاره جات سیمې ته ننوتلي وو.

د ۱۹۸۰ز له پیله د ۱۹۸۲ ترپایه ایرانیانو هڅه وکړه چې په پاکستان کې د مجاهدینو له سني ګروپونو څخه هم ځینې ورسره ملګري کړي، هغوی ته یې یوه اندازه سپکې وسلې، یو ډول ټوپکونه، سپک توغندي، ماینونه او جامې ورکړې. په دغو ګروپونو کې د یادونې وړ د حکمتیار په مشرۍ د حزب اسلامي ګوند ؤ. خو د ۱۹۸۳ز په نیمایي کې ایران د پېښور له اوو ګوندونو سره اړیکې وشلولې. ټول پام یې د افغانستان مرکزي او لویدیزو برخو د ګروپونو پیاوړتیا ته ور واړاوه. له حرکت اسلامي او نورو ګروپونو

سره د دوی ملاتړ بالاخره د دې سبب شو چې ګوندي شخړې رامنځته شي، چې په هغو کې په لوی شمېر چریکي قوماندانان ووژل شول او په مرکزي او لویدیز افغانستان کې د جهاد ډلې کمرزوې شوې. د ایران زیاته برخه مرستې سپاه پاسداران او حزب الله ډلو ته رسیدې، خو د ایران او عراق ترمنځ د جګړې له لامله د دې وسلو د مرستو لړۍ محدوده شوه.
د ۱۹۸۱ز له پیله تر وروسته کلونو پورې د شیعه جهادي ډلو انتخابي ګرپونو روزنه د ایران په بېلابېلو ځایونو کې روانه وه، په دې کې تر ټولو مهم روزنیز مزکز د تهران په شمال کې منظریه پارک مرکز ؤ، دلته د شمالي کوریا او سوریې روزونکیو د ایران پاسداران انقلاب، او پر هغوی سربېره د منځني ختیځ او شمالي افریقا ترهګرو ته روزنه ورکول کیده. دوی به وروسته له دې ځایه لبنان ته استول کیدل، بل مرکز قم ته نږدې (ارم پارک) او درېیم له تهران څخه ختیځ لوري ته ۴۰۰ میله لرې د ګورګان په میدان کې او څلورم یې له تهران څخه ٦۰۰ مېله ختیځ لوري ته په (وکیل آباد) کې ؤ.

*　　　　　*　　　　　*　　　　　*

د ۱۹۸۰ز په پیل کې اېس آی اېس(اوسنۍ اېم آی ٦) یو درې کسیز ټیم له مجاهدینو سره افغانستان ته واستاوه چې د مجاهدینو لخوا د راغورځول شوې ایم آی ۲۴ څرخۍ څو مهمې پرزې یې ترلاسه کړې، دغه درې واړه د اېس آی اېس کرایي غړي، پخواني پوځي ماهرین وو، د مجاهدینو په مرسته دغو کسانو له څرخۍ نه د پام وړ پرزې را وایستلې او بېرته راستنیدل چې

دوې نورې څرخۍ راغلې، له هغو نه کسان راکوز شول پر لویدلې هلیکوپټره یې باروت وتړل او چاودنه یې ورکړه.

د ۱۹۸۳ز په اکتوبر کې کابل حکومت د روسانو په مرسته د لویدیزو هیوادونو پر لاسوهنو د احتجاج په دود پر ملګرو ملتونو سختې نیوکې وکړې. له دې سره جوخت یې د یوه دیرش کلن برتانوي سټوارټ براډمین تصویر خپور کړ او د هغه په اړه یې دا دعوه وکړه چې د جولای پر لومړۍ په یوه جګړه کې ووژل شو، له جامو څخه یې یوه موټرولا یو آر سي ۱۰ سټلایټ مخابره، برتانوي پاسپورټ، نړیوال د موټر چلولو لایسنس او ځینې نور اسناد راووتل، له هغو څخه معلومیدله چې نوموړی په لندن کې د خلیج د ځانګړي سازمان مامور ؤ، او له ده سره درې نور کسان، ټام، کرس او فل هم د ده لیدو ته راتلل. د اکتوبر پر ۵مه د شوروي اتحاد د مخابروي اړیکو جاسوسي کوونکیو پاکستاني مسوولینو د شپږو برتانویانو د نیولو خبر ترلاسه کړ. د افغانستان د بهرنیو چارو وزارت په قول په دغو نیول شویو کسانو کې بورډمین، د هغه درې تنه ملګري او دوه نور کسان راډرک او سټیفن شامل وو، په دوی کې دوه تنه د ۲۲ اېس اې اېس، د هیرفورډ اډې مامورین وو. له دوی نه پلټنې وشوې او دواړو پردې اعتراف وکړ چې په پاکستان او افغانستان کې یې فعالیت کاوه.

د انګلستان د بهرنیو چارو وزارت د دغو شپږو برتانویانو په اړه له معلوماتو ورکولو څخه انکار وکړ، په دې موده کې د رسنیو له پلټنو څخه معلومه شوه چې په برتانیه کې د سټیوارټ بورډمین په نامه یوازینی سړی په (سرې) سیمه کې شته او هغه تر اوسه هیڅکله هم د باندې سفر نه دی

کړی، د روسانو په برید کې د وژل شوي بورډمین اصلي نوم او پیژندنه تر اوسه ونه شوه، افغانستان دعوه وکړه چې د دغه پینځه کسيز ګروپ موخه د ځيرېنو لپاره د روسي وسلو لاسته راوړل وو چې امريکا او بريتانيا ته يې واستوي.

سي آی اې هم د روسي وسلې په اړه له دې فرصت څخه ګټه واخيسته، دغه مهال سي آی اې په شوروي اتحاد کې يو شمېر ارزښتمن انساني جاسوسان درلودل چې د شته او تر لاس لاندې سيستمونو د پلانونو، او تجربو د حساب کتاب په شمول يې، نيغ په نيغه معلومات ورکول. له هغوی څخه يو اې جي ټولکاچيف د مسکو د ايروناټيکل انسټيټيوټ غړی او بل تن د هند د حکومت يو منصبدار ؤ چې، د شوروي اتحاد له لوري يې، هند ته د جوړوونکيو دافع هوا وسلو په اړه معلومات ورکول. خو سي آی اې د ځيرېنې لپاره حقيقي وسلو ته اړتيا درلوده، ځکه خو يې يو ډېر پټ او خطرناک عمليات ترسره کړ، چې شفري نوم يې (اس او وي ايم او ټي) کېښود، ډېر ځله سپکې وسلې د روسانو له وژل شويو مړيو سره ترلاسه کيدې، نور ډولونه وسايل او وسلې نيغ په نيغه مجاهدنيو له خاينو روسي منصبدرانو څخه پيرلې، په هغو کې د لايزر وړانګې هم شاملې وې، چې روسي الوتکو د مجاهدينو له سام توغنديو نه د ژغورنې لپاره کارولې، ډېرې لويې وسلې چې په هغو کې زره پوښونه او په الوتکو کې نصب رادار شامل وو. له سي آی اې سره له نړيوالو شبکو سره اړوندو کاروباري کمپنيو، د ختيځ بلاک د وسلو له سوداګرو او ځينې وختونه له حکومتي ادارو څخه پېرلې.

## د سي آی اې پټې جګړې

خو سي آی اې ته تر ټولو لویه تحفه آی اس آی وړاندې کړه، آی اس آی غوښتل یوه روغه او ثابته میګ ۲۴ الوتکه چې تجارتي نوم یې میګ ۳۵ ورکړی ؤ، لاسته راوړي خو د دې ماډل الوتکې افغان پیلوټ، د آی اس آی هیڅ وړاندیز هم ونه مانه، چې بیا د آی اس آی د افغان بیرو مشر ډګروال یوسف، د اوو ګوندونو مشران له خپلې اړتیا خبر کړل. ډېر زر له کابل سره اړیکې ټینګې شوې او لږ موده وروسته د ۱۹۸۵ز په نیمایي کې دوې میګ ۲۴ جیټ الوتکې په میرانشاه کې راښکته شوې، څو اونۍ وروسته هغه امریکا ته واستول شوې، په دې اړه په زړه پورې خبره داده چې له هغو څخه یوه الوتکه د افغانستان د هوایي ځواک له ښبان سره، پر ۱۹۹۷ز کې د انګلنډ په جنوب کې په فارن برا ښار کې په یوه پوځي اډه کې په یوه ګیراج کې دریدلې ولیدل شوه.

*　　　*　　　*　　　*

پر افغانستان له یرغل وړاندې شوروي اتحاد د دې یرغل او د ولکې لپاره ځینې اساسي ټکي ترتیب کړي وو، د دوی د پوځ لومړنی کار دا ؤ چې له مجاهدینو سره له ټکر څخه ډډه وکړي، په لویو ښارونو کې ګارنیزیونونه جوړ کړي، په هوايي ډګرونو او لویو لارو خپل کنټرول ټینګ کړي، تر دې وروسته به افغان پوځ په کلیو او اطرافو کې ځای په ځای کوي، تر څو هغوی د شوروي پوځونو د هوايي ځواک، توپخانې او لوژیستیکي ملاتړ په واسطه مجاهدین تصفیه کړي، تر دې وروسته به شوروي پوځ بیرته ستنیږي.

خو شوروي پوځونو نه د مجاهدينو د چريکي ګروپونو له ځواک او وړتياؤ معلومات درلودل او نه د افغان ځواک له لويدلي مورال او د جذبې له کمبوده خبر وو، دوې مياشتې وروسته روسي پوځونه له مجاهدنيو سره مخامخ جګړې ته اړ شول، د شوروي پلي پوځ قطعات چې زياتره کسان يې د منځنۍ آسيا د رياستونو اوسيدونکي وو ډېر زر پرې وپوهيدل چې د ګړنديو هغو مجاهدينو په وړاندې دوی هيڅ هم نه دي، چې په (آر پي جي) له اوږې ويشتونکي توغندي او نورو دغسې اغيزمنو وسلو سنبال دي، کله به چې د دوی مرمۍ ختمې شوې نو مجاهدينو به دوی پخپلو زغره والو موټرو کې ووژل.

د شوروي پوځ له لومړنيو بريدونو څخه يو د ۱۹۸۰ په مارچ کې د افغانستان په ختيځ کې په کونړ کې ؤ. له درنو بمباريو او د توپونو له ډزور وروسته، ۲۰۱يم موتريزه غونډ د مجاهدينو لخوا د را ايسار شوي افغان پوځ د کلابندۍ ماتولو لپاره په دره کې پرمختګ پيل کړ، چې زره پوښونه او ټانکونه مجاهدينو وليدل، ځانونه يې شاته کړل او غرونو ته وختل، درې مياشتې وروسته شوروي پوځ له ګرديز نه د خوست په لور تللي سرک د پاکولو لپاره عمليات پيل کړل. مجاهدينو د سرک د پاکولو د عملياتو لپاره راغلي پوځي ګروپونه ټول وځپل او له منځه يې يوړل، دې پېښو د شوروي اتحاد په لويه قوماندانۍ کې چارواکي د خپل جنګي تاکتيک بدلولو ته اړ کړل.

دغه بدلونونه د ۱۹۸۰ز په دوبي کې راغلل، د منځنۍ آسيا اوسيدونکي پوځيان چې له ځايي خلکو سره يې د اسلامي ورورولۍ احساسات درلودل

**او مسکو ته يې په وفادارۍ کې شکونه وو، بېرته واستول شول او د دوی پر ځای د روسيې د پوځ ډلې راوستل شوې، له ۱۹۸۰ز تر ۱۹۸۲ز نيمايي پورې د شوروي پوځونو شمېر زيات کړای شو او تر ۱۲۰ زره تنو پورې ورسيد. د ۴۰مې فرقې درې پلي غونډونه په شينډنډ، کابل او کندوز کې. او درې نور يې يو په شمال او يو له ايران سره په سرحد کې ځای پر ځای شول. څو نور پلي کنډکونه په بګرام، مزارشريف، غزني، او فيض آباد کې ځای پر ځای شول. له دوی سره تخنيکي او توپچي کنډکونه هم وو. په افغانستان کې د هوايي ځواکونو تر ټولو لويه برخه په کابل کې، د عمومي قوماندانۍ په مرکز کې وه چې په هغو کې څلور هوايي غونډونه او درې د هوايي اړيکو کنډکونه شامل وو، دوه د سپتناز کوماندو غونډونه بېل وو چې دوه ډوله يونټونه پکې وو، ريډو يونټ چې بريدګر ګروپونه پکې شامل وو، او بل يونټ يې د جاسوسۍ او نيغ په نيغه بريدونو مهارت درلود.**

**پر ۱۹۸۰ز کې شوروي اتحاد په افغانستان کې د پوځ مرکزي قومانده له منځه يووړه، هيواد يې پر اوو پوځي زونونو وويشلو، هر زون خپل يو پوځي مرکز درلود، او هر زون ته بېلابېلې هليکوپټرې ځانګړې کړای شوې، شوروي چارواکي ډېر زر پردې وپوهيدل چې په جګړه کې د څرخيو رول ډېر مهم دی.**

**په پيل کې د روسي ځواکونو د څرخيو شمېر ٦۰ وزره وې، چې اتلس مياشتې وروسته ۸۱ او بيا وروسته ۳۰۰ وزرو ته زياتې شوې. دا په بګرام، شينډنډ، کندز او کندهار په هوايي ډګرونو کې له ځای پر ځای شويو ځواکونو سره وې، د دوی ځينې کنډکونه په بهر کې د ګومارل شويو يونټونو**

سره وو، د ثابتو وزرو لرونکیو او ترانسپورتي الوتکو شمېر هم د جګړې له توندیدو سره زیاتیدو، خو اداره یې په کابل کې د ۴۰مې فرقې د قوماندانۍ په لاس کې وه.

په دې موده کې شوروي پوځونه په دودیز ډول په فرقو او غونډونو ویشلي وو، په هرو پوځي عملیاتو کې له ٦-۱۲زره پوځیانو برخه اخیستله چې په دې کې به افغان پوځونه هم شامل وو، د دوی پیل به له سختې بمبارۍ څخه ؤ، چې ورپسې به زغروالو ټانکونو او زره پوښونو په سیمه کې پر سرکونو پرمختګ کاوه. خو د هوایي ځواک تر حمایې لاندې او د توپونو د دم تر ساحې پورې به پر مخ تلل، مجاهدین به زیاتره د دوی له برید څخه خبریدل او غرونو ته به وختل، چې بیا به روسي پوځونو د لنډ وخت لپاره سیمه ونیوله، دوی دایمي مرکزونه او قرارګاوې نشوای جوړولای او بیرته به خپلو ګارنیزیونونو ته راستنیدل او چریکان به بېرته پر سیمه مسلط شول، معنا دا چې په یوه سیمه کې به بیا بیا عملیات کیدل.

خو د ۱۹۸۰ز په پای کې روسي پوځونو خپله عملیاتي تګلاره بدله کړه، پلي پوځیان به راوړاندې شول، د سیمې د مجاهدینو د ګروپونو ښي او کیڼ لور ته به په څرخیو کې کوماندو ګروپونه راکوز کړای شول چې د دوی اړیکې له یو بل نه غوڅې کړي، د دوی مرکزونه به یې له منځه یوړل او د اکمالاتو لارې به یې غوڅې کړې.

دغه ډول لومړی عملیات په کونړ ولایت کې د ۱۹۸۰ز په دسمبر کې وشول، هغه مهال چې شوروي پوځونو د مجاهدینو یوه ۵۰ کسیزه ډله ولیدله چې له پاکستان نه راغله، دې ډلې غوښتل له سینده پورې وزي او د چغه سرای

**(اسعدآباد) په جنوب ختیځ کې د سمڅو (هغه غارونه چې د مجاهدینو مرکزونه به پکې وو) په لور لاړه شي.**

**د هوايي ځواک یو کنډک په چغه سرای کې وګومارل شو، د دسمبر پر ۱۵مه سهار له هغه ځایه یو ټولي پوځیان د سرک له لارې د سمڅو په جنوب کې یو میل لرې یوه ځای ته ورسیدل. له هغه ځایه یې جنوب او جنوب لویدیز لور ته هدف کلابند کړ، بل پوځ په دې موده کې د شمال او لویدیز لوري د کلابندۍ لپاره وررسیدلی ؤ. ماښام پینځه بجې یوه بله ډله له ختیځ لوري د سمڅو سیمې ته ورننوتل، چې کله مجاهدین له هغه ځای شاته لاړل نو له نورو په مورچل کې ناستو ځواکونو سره مخ شول، په دې جګړه کې ۲۴تنه مجاهدین ووژل شول او څلور تنه ژوندي ونیول شول.**

**د ۱۹۸۰ز په اوږدو کې د روسي ځواکونو عملیات زیاتره په دې موخه وو چې د کابل او نورو سترو پوځي مرکزونو امنیت وساتي، په اپریل کې روسي او افغان پوځونو د احمد شاه مسعود د جنګیالیو پر خلاف پر پنجشیر برید وکړ، دغه دره کابل ته د ورغلې لویې لارې په اړخ کې پرته ده، د دې درې ځانګړتیا داوه چې احمدشاه مسعود د سالنګ تر تونل پورې لاره بندولای شوای. له همدې لامله روسي پوځونو دلته ډېر بریدونه ترسره کړل. په مارچ کې مسعود د بګرام پر هوايي ډګر برید وکړ، له دې ځایه به روسي پوځ پر پنجشیر بریدونه کول، که څه هم مسعود او مجاهدین یې له درې وایستل شول خو هغوی خوندي، شاوخوا غرونو ته وختل، له هغه ځایه یې دښمن ویراوه.**

**همدغه ډول یرغل په اپریل کې د کابل په جنوب کې د لوګر په دره ترسره شو، دا هم ناکام شو، په اګسټ کې په بلخ کې د مارمول په غونډیو کې د مجاهدینو د مرکز د کلابندۍ هڅه وشوه چې ناکامه شوه.**

**د ۱۹۸۱ز په پای کې شوروي اتحاد په افغانستان کې یو شمیر قوماندانان بدل کړل، نویو قوماندانانو له پاکستان څخه د مجاهدینو د لارې د تړلو پر نوي پلان فکر وکړ. له اکتوبر تر دسمبر پورې، شوروي او افغان الوتکو څو ځلې د پاکستان له فضایي حدودو څخه سرغړونه وکړه او څو څو ځلې یې د کرښې په شاوخوا کې د مجاهدینو پر مرکزونو بمبارۍ وکړې، په ننګرهار او پروان ولایتونو کې یې هم یو شمیر بریالي عملیات وکړل چې مجاهدینو ته پکې درانه زیانونه واوښتل.**

**د ۱۹۸۲ز په پیل کې شوروي پوځیانو بیا په لویه کچه بریدونه پیل کړل، په جنورۍ میاشت کې یې په پروان ولایت کې مجاهدینو ته درونډ زیان ورساوه. دغسې یرغلونه یې پر کندهار او هرات هم وکړل. د اپریل د ۲۵مې په شپه مجاهدینو د بګرام پر هوایي ډګر برید وکړ او تر یو درجن زیاتې الوتکې یې ویجاړې کړې، چې په غبرګون کې یې ۱۱زره روسي او څلور زره افغان پوځونو پر پنجشیر یو بل برید وکړ، یو شمیر پوځونه درې ته د جنوب له لورې او یو شمیر نور د شمال له لورې ننوتل، او دره یې له دواړو لوریو بنده کړه. وروسته بیا روسي الوتکو ټوله سیمه بمباري کړه، او په لویه کچه یې کلي ویجاړ کړل چې له پخوا څخه خلک ترې وتلي وو، ورپسې په ځرخیو کې زیات شمیر کوماندویان ښکته کړای شول، خو د مسعود**

**مجاهدین خوندي غرونو ته ختلي وو او کوم پوځیان چې پر دوی پسې وو، پر هغو به یې بریدونه کول.**

**د ۱۹۸۲ز په پاتې موده کې روسانو د کابل په شمال کې په غوربند او پنجشیر او د کابل په جنوب کې د لوګر په درو بریدونه وکړل چې ټول ناکام شول. پر ۱۹۸۳ز کې شوروي اتحاد یو ځل بیا خپل جګړه ایز پلان بدل کړ، دوی پردې وپوهیدل چې د دوی پلي زغره وال ځواکونه د داسې جګړو لپاره مناسب نه دي روزل شوي چې ورته اړتیا یې ده، چې سپکې وسلې او ګړندي موټر ورسره وي، چې پر دښمن اغیزمن ګوزار وکړای شي. ځکه خو دوی د خپل هوايي ځواک له کوماندویانو څخه د بغاوت د ځپلو یو ځانګړی ځواک جوړ کړ، چې د سپتناز له دوو ګروپونو سره به یې نه یوازې د هوايي عملیاتو پر مهال ښکته کول، بلکې د دوی وړوکي ګروپونه به یې د مجاهدینو دننه ګروپونو او د اکمالاتو د لارو تړلو لپاره ځای پر ځای کول.**

**دغه ډول یو پوځي عملیات چې د ۲۰ تنو یوې ډلې لخوا ترسره شو، د ۱۹۸۳ز په جولای کې ؤ، دې ډلې په هلمند کې د مجاهدینو د اکمالاتو دلارې پر سر کمین ونیو، دغه ګروپ د شپې مهال د سیمې جنوب لور ته درې میله لرې له څرخیو څخه پلی کړای شو، دوی سهار په تیاره کې د کمین نیولو ځای ته روان شول، هلته دوی د مجاهدینو د ښار یوه پوسته لیدلې وه چې دوه تنه پکې په پهره ګومارل شوي وو. شمال لور ته انووا نومې دره او نیم میل لرې لویدیز لوري ته یې د مارجې دره (اوس ولسوالي) پرته وه، نهه نیمې بجې دې ګروپ د سیند پر سر پله ماینونه خښ کړل او کمین یې**

ونيو، راتلونكي پينځه نيم ساعتونه يې هيڅ هم ونه ليدل، د دې ګروپ قوماندان ته لارښوونه شوې وه چې درې نيمې بجې به بېرته ځانونه راباسي، خو ۲۵ دقيقې وړاندې يوه لارۍ راښکاره شوه، چې پله ته راورسيده ماينونه وچاوديدل او په کمين کې ناستو عسکرو ډزې پيل کړې، له دې سره دوی هغه د ځارنې پوستې ته هم لاسي بمونه ور وغورځول، په دوو دقيقو کې په لارۍ کې سپاره ۲۸تنه ټول ووژل شول.

د راتلونکيو دوو مياشتو په اوږدو کې دې کنډک په اتو عملياتو کې ۲۰۰ تنه مجاهدين ووژل او ۲۰ تنه نور يې ونيول، پر وسلو سربېره دوی د ايران او پاکستان ډېرې پيسې هم ترې لاسته راوړې.

پر ۱۹۸۳ز مجاهدينو ارګون، خوست او ځاځيو چونۍ کلابند کړل، ددې کلابنديو لپاره يې ډېرې وسلې او وسايل راټول کړي وو، خو دوی داسې روزل شوې عمله نه درلوده چې د روسانو لخوا غوړول شوي ماينونه وباسي، په اګسټ کې ۱۲زره شوروي پوځيانو د ځاځيو کلابندي ماته کړه، خو د خوست کلابندي يې ايله په دسمبر کې ماته کړای شوه، لس زره روسي، اوه نيم زره افغان پوځيانو هلته مجاهدين پر شا وتمبول، د ارګون کلابندي د راتلونکي کال د جنورۍ تر ۲۲مې پورې دوام درلوده، دغه کلابندي هغه مهال ماته شوه چې شوروي هليکوپټرو هلته کوماندويان ښکته کړل.

مجاهدينو د کابل امنيتي کړۍ د ماتولو لپاره هم ډېرې هڅې وکړې، تر اوسه پورې دوی پر شوروي پوځيانو او بارکونو د وړوکيو ګروپونو په واسطه بريدونه کول، خو د امنيتي تدابيرو د ډېرېدو له امله پر کابل د بريدونو دوام ستونزمن شو، ځکه خو پر بالاحصار د لوی بريد لپاره تياری ونيول شو

چې د ښار پر څنډه د شوروي پوځونو ستر مرکز ؤ. د اګسټ پر ۱۳مه د مجاهدينو يوه لويه ډله له دفاعي کرښو تېره شوه او پر بالاحصار يې بريد پيل کړ، کرۍ شپه جګړه روانه وه، سهار ته مجاهدين بېرته ووتل.
تر دې وروسته شمال ختيځ لور ته، پر يوه لوی افغاني مرکز حمله وشوه، چې په هغو کې يو شمېر الوتکې ويجاړې او د وسلو ډيپوګانې تباه شوې، تردې وروسته کابل ته په ورغليو لويو لارو پر يو شمير روسي کاروانونو بريدونه وشول چې بيا په غبرګون کې شوروي پوځ وپاريد او د شمالي په درې درو يې خوشه يي بمونه وغورځول، د مجاهدينو پر خلاف د بريد لپاره يې له ځرخيو عسکر هم پلي کړل.
په ۱۹۸۳ز کې احمد شاه مسعود له کابل حکومت او روسانو سره اوربند وکړ، دغه اوربند يو کال دوام درلود، خو د ۱۹۸۴ز په مارچ کې شوروي پوځيان پردې وپوهيدل چې مسعود به دغه اوربند نور ونه غځوي، د اپريل په مياشت کې دوی د سالنګ پر لويه لاره بيا بريدونه پيل کړل. ځکه خو شوروي پوځ د (پنجشير ۷) په نامه لوی پوځي عمليات پيل کړل، چې موخه يې د احمدشاه مسعود د پوځيانو له منځه وړل وو. په دې عملياتو کې شل زره تنه پوځ برخه درلوده، په دې کې له شوروي اتحاد څخه راغلي تازه نفسه ٦زره پوځيان هم شامل وو، شپږ زره افغان پوځيان هم په دې جګړه کې شامل وو، په دې جګړه کې د شوروي د هوايي ځواکونو هر ډول بمبارد جيټ او ځرخيو الوتکو هم برخه درلوده. د بريد لپاره د قوماندې او کنترول شاندار چوکاټ ؤ، چې د قوماندې مرکز له هر ډول وسايلو څخه پوره په يوه ترانسپورتي الوتکه کې ؤ.

خو مسعود ډېر زر له دې برید څخه خبر شو او په مارچ کې یې د سالنګ پر لویه لاره مخکې له مخکې برید وکړ، ده ته د افغان پوځ په منځ کې خپلو خواخوږیو د برید په اړه بشپړ معلومات ورکړي وو، ځکه خو ده خپل زیات جنګیالي او د سیمې عام اوسیدونکي له درې څخه غرونو ته وایستل، د درې په اوږدو کې یې زیات ماینونه ښخ کړل او بیا یې پاتې جنګیالي هم غرونو ته ورسره بوتلل.

له برید څخه وړاندې پر دره سر تر پایه درنه بمباری وشوه، د اپریل پر ۲۱مه د توپونو په سختو ډزو کې، لس زره روسي میکانیزه قوا له ۵زره افغان پوځیانو سره د درې په لور وخوځیدل، د ماینونو په سبب له لږ ځنډ وروسته هغوی درې ته ننوتل او د اپریل پر ۲۴مه رخه ته ورسیدل، له هغه ځایه د خنج په لور وخوځیدل، د می په پیل کې د عملیاتو په دوهم پړاو کې د راوت په دښته کې او د ځنګ د لویې درې په پیل کې څرخیو کوماندو ښکته کړل، دلته سخته نښته وشوه او مجاهدینو یو د هوایي ځواکونو کنډک بشپړ له منځه یووړ، په دره کې دننه بیا د توندې بمبارۍ له لامله مجاهدینو ته د سر درووند زیان واوښت.

په دې موده کې شوروي پوځونو په شاوخوا درو کې پرمختګ کړی ؤ، یوې بلې ډلې د سالنګ له لویې لارې څخه د اندراب په دره کې له هوایي کوماندو ځواک سره اړیکې ټینګې کړې، له جلال آباد څخه نور پوځونه راغلل او د لغمان د علیشنګ او کانسي وار درې یې ځارلې، خو د ځنګ په درو کې شوروي پوځیانو ډېر لږ پرمختګ درلود.

هلته له مسعود سره د نورو مجاهدينو مرستې پيل شوې وې، هغوی پر مسعود د فشار د کمولو لپاره پر جلال آباد او کابل بريدونه پيل کړل، مسعود پر بګرام يو بل بريد وکړ چې په هغو کې يې يو شمېر مېګ ۲۱ الوتکې ويجاړې کړې.

د جون تر پايه دغه بريد پای ته ورسيد او شوروي پوځيان بېرته ستانه شول، د مسعود د تباه کولو موخه پوره نه شوه، او هغه بېرته درې ته راستون شو، او په سيمه کې يې د روسانو پر مرکزونو بريدونه کول، په دې بريد کې پينځه سوه تنه روسي پوځيان ووژل شول، يو شمېر څرخي رانسکورې شوې او دوه سوه تنه مجاهدين هم ووژل شول.

په سپتمبر کې پر پنجشير يوه بله حمله هم ناکامه شوه.

پر هوايي ځواک د شوروي اتحاد د پوځ انحصار پر ۱۹۸۵ز کې هم دوام درلود، په اګسټ کې مجاهدينو په لوګر کې خپل فعاليتونه زيات کړل. دوی له جنوب ختيځ لوري پر کابل ډزې هم کولې، پردې سربېره له کابل څخه بهر پر پوځي کاروانونو او پوستو هم د دوی بريدونو دوام درلود.

دغه مهال افغان څارګرې ادارې (خاد) خبر تر لاسه کړ چې شپږ سوه تنه مجاهدين په ۱۵ ګروپونو کې منظم شوي په خورد کابل، ملنګ، کالا او مالي خيلو کليو کې ځای پر ځای دي. له دې ځايه ۱۲ ميله لرې يې په خاص تيزين کې هم د دوی زيات شمير جنګيالي شته او دلته يې د وسلو زيرمه هم ده.

افغان پوځ پريکړه وکړه چې په لوګر دره کې يو مرکز جوړ کړي، همدغسې دا پريکړه وشوه چې د شوروي پوځ ۱۰۳يم لمبر ګارډ هوايي کوماندو فرقه

## د سي آی اې پټې جګړې

به د جګړن جول یوري یاري جن په مشرۍ پر مجاهدینو برید کوي، د دوو هوايي کوماندو ځواکونو درې ګروپه جوړ کړای شول، له دوی سره نور پلي کنډکونه هم یو ځای شول.

دې پوځ د اګسټ له ۱۱-۱۹ پورې عملیات باید پیل کړي وای، د اګسټ پر ۱۳مه دوه جاسوسي او د کشف کنډکونه ۳۰ میله وړاندې په داسې ځای باید ګومارل شوي وای چې د لوګر د درې په جنوب کې د مجاهدینو سمڅې او مرکزونه کلابند کړي. درې غونډونو به د مرکزي پوځ په توګه د خورد کابل په شمال کې برید کاوه، خو د دې برید له پیل څخه لږ مخکې مجاهدینو د لوګر په دره کې د افغان پوځ پر مرکز برید وکړ، له دې سره د شوروي او افغان دولت په جنګي پلان کې بدلون راغی، د کشف دوه ګروپه اوس بېلابېل د مالي خېل د کلابندۍ لپاره واستول شول.

د اګسټ پر ۱۳مه د کشف ډلې له افغان پوځ سره د مجاهدینو د مرکزونو په لویدیز مخ ځوړیو کې ښکته کړای شول. له هغه ځایه دوی د جنوب په لور پرمختګ پیل کړ، خو له شاوخوا لوړو ساحو څخه مجاهدینو سختې ډزې پرې پیل کړې، او د دوی د پرمختګ مخه يې ونیوه، ځکه دغه پوځ پر یوه غونډۍ سنګر ونیو او د لوی پوځ د راتلو په انتظار شول، سبا ته پوځ راورسید خو تردې مهاله مجاهدین وتلي وو.

اوس جګړن یاري جن د عملیاتو په دوهم پړاو کې پر خاص تیزین د برید پرېکړه وکړه، په هغه ورځ پاو کم دوې بجې توپخانې درنې ډزې پیل کړې، وروسته بیا پر سیمه هوايي بمباري پیل شوه، پاو باندې درې بجې پوځې ګرپونه په هلیکوپټرو کې په دوو ځایونو کې پلي کړای شول، له هغه ځایه

دوی داسې ساحو ته لاړل چې سیمه کلابنده کړای شي. تر دې وروسته اصلي پوځ په دوو نورو ځایونو کې پلی کړای شو.

د کشف او جاسوسۍ ګروپونه د کوزیدو له اصلي ځای څخه څلور میله لرې لویدیز لور ته پلي کړای شول، له هغو ځایه هغوی د خاص تیزین لویدیز ته ورسیدل، خو هلته د مجاهدینو هیڅ نوم او نښان نه ؤ. وروسته بیا دوی وپوهیدل چې په نقشه کې د کلي نوم غلط ؤ. اصلی موخه زندیخ کلايي ؤ.

پوځ هغه لور ته روان شو، په تونده جګړه کې دوه نیم سوه تنه مجاهدین ووژل شول، او د وسلو او نورو جنګي موادو لویه زیرمه دوی ته په لاس ورغله.

د هوايي ځواکونو او هوايي کوماندویانو په واسطه چې کوم بریدونه ترسره کیدل، د هغوی د بریالي کولو لپاره یې د دغو غونډونو او کنډکونو قومانده ځوانو منصبدارانو ته سپارله چې دا د شوروي پوځ له پالیسۍ څخه سر غړونه وه، ددې یو څرګند مثال د ۱۹۸۵ز په اکتوبر کې رامخې ته شو، کله چې په کندهار کې له ګومارل شوې (۷۰)یمې پلې موټریزې لوا سره اړوند هوايي کوماندو ځواکونو یو عملیات ترسره کړل.

دوی خبر ترلاسه کړ چې مجاهدینو د ښار په جنوب لویدیز کې یو روزنیز مرکز جوړ کړی دی، ځکه خو دې لوا ته پر هغه مرکز د برید حکم وشو. د اکتوبر پر ۱۳مه د ماښام پر اوو بجو، د ۱۲ کنډک هوايي کوماندو ځواکونه د کپتان وي جي استراټیلي په مشرۍ د هدف ختیځ ته یوې غونډۍ ته نږدې کوز کړای شول، مجاهدینو پر هغوی سمدستی ډزې پیل کړې، او په

نوره کرۍ ورځ کې د توپچي او هوايي ځواکونو په سختو ډزو او بمباريو کې هم دوی نور پوځ راکوز نکړای شو.

تر ماښامه د ښکته شوي ګروپ کارتوس او مهمات پر ختميدو شول، د اکتوبر پر ۱۴مه سهار د دوی لومړی کنډک لويديز لوري ته پرمخ روان شو او د روزنيز مرکز جنوب لويديز ته ورسيد، دوهم کنډک د غره په جنوب ختيځ لوري کې د مجاهدينو د مرکزونو په لور پرمختګ پيل کړ، دريېم کنډک د اډې جنوب ته ورسيد، يوه نيمه بجه له درې واړو لوريو بريد پيل شو، او د جګړې په بهير کې دويم کنډک مخه واړوله او پر مرکز يې له ختيځ لوري بريد پيل کړ، بريد بريالی ؤ او د ماښام تر څلورو بجو پورې دغه مرکز د روسي ځواکونو لاس ته ورغی، مجاهدينو ځوابي بريد وکړ خو بېرته پر شا ولاړل، وروسته مجاهدين له سيمې ووتل.

*　　　　　*　　　　　*　　　　　*

د شوروي اتحاد له لوري د هوايي ځواکونو او کوماندو پوځيانو د بريدونو له زياتيدو سره مجاهدينو پر آی اس آی فشار راوړ چې اغيزمن ځوابي اقدامات وکړي، تر ټولو ستر خطر ايم آی ۲۴ ډوله ګنشپ هليکوپټرې وې چې توپونه او درانه ماشيندار به پکې ټينګ وو، پر بمونو او توغنديو سنبال د دغه څرخيو په شاتني کابين کې لس تنه وسله وال عسکر هم کيناستلای شوای.

لکه چې په پيل کې يادونه وشوه چې مصري او چينايي سام ۷توغندي او ريډ آی امريکايي توغندي ناکاره ثابت شول. پر ۱۹۸۴ز کې آی اس آی له سي آی اې سره د ايف آی ايم ۹۲-A ستېنګر توغنديو د چمتو کولو لپاره

اړیکه ونیوه. دغه د حرارتي وړانګو په واسطه رهبري کیدونکي توغندي، له ۱۹۸۲ز راهیسې د ریډ آی پر ځای د امریکایي پوځ له خوا کاریدل، امریکا دغسې دری زره لانچره توغندي درلودل، سي آی اې، د آی اس آی دغه غوښتنه رد کړه، د دې یو لامل دا وېره وه چې په دې توغندي کې کارول شوې ټکنالوجي شوروي اتحاد ته په لاس ورنشي. د امریکا د دفاع وزیر سپرداین برګر هم د دغه دریځ پلوي ؤ. په داسې حال کې چې د بهرنیو چارو وزارت بیا په دې نظر ؤ چې د لوړې ټکنالوجۍ امریکایي وسلې که په افغانستان کې وکارول شي شوروي اتحاد به د پاکستان پر خلاف سخت غبرګون ته راوپاروي.

د ۱۹۸۵ز په مې کې د امریکا د دفاع وزارت د پالیسۍ مرستیال فرید اکلې، او په افغان چارو کې د هغه د اړیکو مسوول مایکل پلس بري اسلام آباد ته پر سفر لاړل، دوی د آی اس آی مرکز ته هم ورغلل، هلته یې د آی اس آی له مشر جنرال اختر عبدالرحمان سره وکتل، هغه دوی ته د الوتکو ضد اغیزمنو وسلو په اړه خپل د اړتیا لیست وسپاره، په دې لیست کې د سټېنګر نوم هم ؤ، ډېر زر دغه لیست د امریکا سفارت د پټو استخباراتو ادارې، د سي آی اې مشر ویلم کیسي ته واستاوه، اکلی او پلس بري له جنرال ضیاء سره هم ولیدل، هغه ویل چې دغه توغندي باید پاکستاني پوځ ته ورکړای شوي وای، مجاهدینو ته د دې توغندیو د برابرولو په اړه یې وویل چې دی به پردې فکر وکړي.

د پاکستان د پوځ یوه مهم جنرال میرزا اسلم بیګ، چې دده قول اردو له افغانستان سره د کرښې په اوږدو کې پرته وه، اکلي او پلس بري ته وویل

## د سي آی اې پټې جګړې

چې مجاهدین د شوروي پوځونو په وړاندې له ماتې سره مخ دي، د ده خبرو او وروسته بیا له جنرال اختر عبدالرحمان سره خبرو اترو، دغه دواړه چارواکي پردې قانع کړل چې له مجاهدینو سره باید د امریکا مرستې زیاتې شي. چې واشنګټن ته راستانه شول پر همدې خبره یې ټینګار کاوه، ځکه خو د امریکا د بهرنیو چاروز وزات له پټې بودیجې څخه ۲۰۰ ملیون ډالره مرستې زیاتولو پرېکړه وکړه، خو د ستېینګر توغندیو ورکولو غوښتنه بیا هم رد شوه.

د سي آی اې د عملیاتي ریاست مشر جان میک موهن دا وړاندیز وکړ چې مجاهدینو ته بلو پایپ سام توغندي ورکړای شي. دغه درانه او ځورووونکي توغندي برتانوي پوځ پر ۱۹۷۵ز کې کارولي وو، خو آی اس آې واله پردې پوهیدل چې د دې توغندي د کارولو لپاره باید له مورچې راووزي، له دې لامله به هغه اسان د دښمن نښه کیدای شي، خو ستېینګر بیا له مورچل څخه هم توغول کیدای شي. د فاک لنډ په جګړه کې هم د بلو پایپ اغیز مایوسوونکی ؤ. له هغه وروسته ۲۲ابس اې اې له امریکایي پوځ څخه ستېینګر توغندي لاسته راوړل پخپله برتانیې هم د بلوپایپ پر ځای په ۱۹۸۴ز کې جاویلین نومي توغندي کارول.

بیا هم سي آی اې د بلو پایپ په ورکولو ټینګار کاوه، کله چې دغه توغندي مجاهدینو ته ورسیدل نو د هغه لومړی بار ناقص ؤ، د هغو رهبري سیستم خراب ؤ، چې له امله یې دغه توغندي له فیر سره بې لارې کیدل، له ادلون بدلون وروسته هم ونه چلیدل او بې باوره وو، پردې سربېره یې بیا هم نور بلوپایپ واستول، د یوه ناکام عملیات پر مهال شوروي پوځ ته څلور

توغندي په لاس ورغلل، دوی پخپلو تلویزیوني چینلونو کې هغه وښودل دا یې ثابته کړه چې برتانیه نیغ په نیغه په دې جگړه کې لاس لري.

د سي آی اې له لوري مجاهدینو ته د ورکړل شویو وسلو څخه یو ۲۰ ملي متري الوتکې ضد دافع هوا هم ؤ چې د سویزرلینډ د (اوئر لیکن بوهرلې) کمپنۍ لخوا جوړه شوې وسله وه، ۱۲۰۰ پونډه دروند دغه توپ ډېر لوی او بد شکله ؤ چې د چریکي جگړو لپاره مناسب نه ؤ. دې توپ په یوه دقیقه کې یو زر مرمۍ ویشتلې، هره مرمۍ یې په پنځوس ډالره لویده. د چریکانو لپاره د ډزو په اړه هیڅ اصول او قواعد هم نه وو، ځکه خو به د دې توپونو لپاره زښته زیاتې مرمۍ هم راغوښتل کیدې، له دې ستونزو سره سره دغه ډول پنځوس میله دافع هوا توپونه پاکستان ته ورسول شول.

د سټېنگر توغندیو په اړه مخالفت نور هم مخ په کمیدو ؤ، ځکه چې ضیاء الحق چې تر اوسه پورې مجاهدینو ته د سټېنگر توغندیو ورکولو مخالف ؤ، اوس هغه پخپله دې ته راضي شوی ؤ چې دغه توغندي ورکړای شي، همدارنگه نور دا دامریکا د پوځ لپاره لومړیتوب نه درلود، ځکه چې تردې پرمختللي توغندي ورکړل شوي وو او هغه بیرته ترې تولیدل، پردې سربېره د دې توغندیو جوړوونکې ادارې جنرل ډاینامکس دا تصدیق کړې وه چې دوی د دې توغندیو د تولید د دوام وړتیا لري.

د ۱۹۸٦ز د فبروری پر ۲٦مه د انټرایجنسي عمومي کمپنۍ مجاهدینو ته د دې توغندیو د چمتو کولو منظوري ورکړه، خو د ۱۹۸۷ز په نیمایي کې د دې ۲۵۰ میله لانچر له یو زر توغندیو سره د آی اس آی په واسطه افغانستان ته ورسیدل.

## د سي آی اې پټې جګړې

د ۱۹۸٦ز په اپریل کې شوروي پوځ پر کونړ، ننګرهار، او پکتیا یرغل ور ووړ، موخه یې له پاکستان څخه د مجاهدینو د اکمالاتو د لارې بندول وو. په دې ساحه کې د شوروي پوځیانو لویه اډه جلال آباد ۀ، دلته پر افغان پوځ سربېره د شوروي پوځ یوه پلې لوا او یو د سپتناز کوماندو غونډ ۀ.

په شمال ختیځ کې، د کونړ په اسعدآباد کې، یوه فرقه افغان پوځ او یو کنډک د سپټناز کوماندو په اسمار کې پروت ۀ. د جلال آباد جنوب ته د خوست په ښار کې یوه فرقه د افغان ځواکونو او یو کنډک د شوروي پوځیانو ځای پر ځای شوي وو.

ځینې نور ګارنیزیونونه د علي خېلو په چوڼۍ کې او په ژوره کې هم وو، د دې دواړو ځایونو په منځ کې پاکستاني سیمه (قبایلي سیمه) د طوطی د مښوکې په څېر وړاندې راتېره ده چې دلته د پاړاچینار ښار دی چې آی اس آی له دې ځایه مجاهدینو ته ۴۰ سلنه اکمالات رسول.

د ۱۹۸۵ز په اوږدو کې چریکانو خوست کلابند کړی ۀ چې شاوخوا ته یې ماینونه ښخ شوي وو، د خوست فرقې د هغه غونډیو پر سرونو مورچلونه نیولی وو، چې د ښار جنوب ختیځ لور ته پرتې وې. د خوست د نیولو لپاره دې ته اړتیا وه چې دغه غونډۍ هم ونیول شي، خو مجاهدین د دې په نیولو بریالي نه شول. د اګسټ پر ۲۰مه شوروي پوځ پر سیمه یو لوی یرغل پیل کړ، چې موخه یې د طوطي د مښوکې غوندې سیمې نه د مجاهدینو شاته ټیل وهل وو. مجاهدینو کلابندي ختمه کړه.

پینځه میاشتې وروسته د ۱۹۸٦ز په مارچ کې، شوروي پوځ پر ژوره د لوی برید پلان جوړ کړ چې په اپریل کې باید ترسره شوی وای، د افغان پوځ

فرقه په خوست کې ځای پر ځای شوه او د شوروي پوځ کوماندو هوایي ځواک هم راورسید، پردې سربېره یې د سپتناز ځواک هم د دې عملیاتو لپاره وګوماره چې دنده یې د مجاهدینو پر کاروانونو بریدونه وو. آی اس آی چې له دې حملې څخه خبر شو پریشانه شول. مجاهدینو ته یې د دفاعي کرښو د پیاوړي کولو وویل، د ژورې مرکز پر ورغلیو لارو یې ماینونه وغوړول، پر هغو لارو یې د ټانګ او الوتکې ضد وسلې هم ځای پر ځای کړې، په ژورو سمڅو یې هم د مجاهدینو ډلې وګومارلې خو پخپله د مرکز دفاع ته یې پاملرنه ونه کړه، په داسې حال کې چې آی اس آی مجاهدینو ته ویلي وو چې د مرکز شاوخوا ته کندې وکاږي.
د آی اس آی اندېښنه داوه چې ژورې مجاهدینو او آی اس آی دواړو ته زښت ډېر اهمیت درلود، دلته روزنیز او عملیاتي مرکز ؤ، پردې سربېره دلته د آزادې سیمې حکومت او محکمه هم وه، دا ټوله سیمه د مولوي یونس خالص د حزب اسلامي د قوماندان مولوي جلال الدین حقاني په واک کې وه، د نوموړي لس زره تنه مجاهدین د ښار شمال لور ته د روسي پوځ له خطر سره مقابلې ته ولاړ وو، د ژورې ښي لوري ته د پیر ګیلاني ملي اسلامي محاذ او د مولوي نبي محمدي حرکت انقلاب اسلامي مجاهدین پراته وو. (د ژورې په څنګ کې د حزب اسلامي د مشهور قوماندان انجنیر فیض محمد په مشرۍ د جهادوال مرکز هم ؤ چې له جلال الدین حقاني وروسته دوهم لوی مرکز ؤ. ژباړن)
د اپریل په لومړۍ اونۍ کې پر ژوره برید پیل شو، لومړۍ د شوروی پوځ کوماندویان له افغان کوماندو سره د څرخیو په واسطه ښکته کړای شول،

بیا پلیو ځواکونو له ټانکونو او زره پوښونو سره د تڼیو له لارې د جنوب په لور پرمختګ پیل کړ، خو د تڼیو په جنوب کې مجاهدینو له دوی سره کلکه مقابله وکړه، له دې سره جوخت مجاهدینو د خوست پر هوایي ډګر برید وکړ چې له امله یې د شوروي پوځ هوایي عملیات ګډوډ شول.

تر ډېرو ورځو وروسته هم په برید کې ډېر پرمختګ رانغی، چې بیا د عملیاتو افغان قوماندان ډګروال عبدالغفور د جګړې په پلان کې بدلون راوست، د اپریل پر۱۱مه هغه یو کنډک د لسو څرخیو په واسطه ژورې ته نږدې کوز کړل، د کنډک دغه ۴۰۰ تنه له ښکته کیدو سره، د مجاهدینو د درنو ماشیندارو تر ډزو لاندې راغلل، درې څرخۍ رانسکورې شوې، نورې څرخۍ هم په ګولیو سورۍ شوې، ټول پوځیان یا ووژل شول یا ژوندي ونیول شول.

د اپریل له ۱۱مې-۲۲مې پر ژوره زیات هوایي بریدونه وشول، ډزو هم دوام درلود، سټېنګر توغندي لا تر اوسه ډګر ته نه وو راوتلي، له مجاهدینو سره د الوتکو د مقابلې لپاره اغیزمنه وسله نه وه، ځکه خو الوتکو د دوی پر مرکزونو نیغ بریدونه کول، هغه سمڅې هم تر بمباریو لاندې نښه شوې چې د جلال الدین حقاني مرکز پکې ؤ. آی اس آی خپل بلوپایپ ټیم هلته واستاوه، چې پر الوتکو یې ۱۳توغندي ورخوشي کړل خو ټول بېکاره لاړل، بالاخره د ژورې مرکز روسانو ونیو، شوروي او افغان پوځ تر ۴۸ ساعتونو پورې په منظم ډول هلته هر څه برباد کړل او بیا ترې ووتل. د کابل حکومت اعلان وکړ چې لویه بریا یې لاسته راوړه، دوی دا دعوه وکړه چې دوه زره مجاهدین یې ووژل او څلور زره تنه یې ټپیان کړل، خو د ډګروال

يوسف په قول ټول ټال درې سوه تنه مجاهدين ووژل شول او درې لارۍ وسله او پوځي توکي له منځه يووړل شول، په داسې حال کې چې د افغان-روس د ګډو ځواکونو ۱۵۰۰ سرتيري وژل شوي او يا ټپيان، سل تنه ژوندي نيول شوي وو او درې څرخۍ له منځه لاړې، دوې ورځې وروسته مجاهدين بيرته ژورې ته راغلل.

راتلونکې مياشت په کابل کې حکومتي زعامت بدل شو، د ببرک کارمل پر ځای ډاکټر نجيب راغی. د ۱۹۸۵ز د مارچ پر ۱۱مه د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د عمومي منشي په توګه د ميخايل ګورباچوف له غوره کيدو وروسته، شوروي اتحاد پر خپله افغان پاليسۍ له سره غور وکړ، په اکتوبر کې پخپله ګورباچوف له ببرک کارمل سره پټ وليدل او ورته ويې ويل چې په خپل حکومت کې له سياسي اړخه پراخ بنسټه انکشاف راولي او غير ګوندي کسان هم پکې شامل کړي. هغه ته يې وويل چې له مجاهدينو سره جوړ جاړی وکړه چې د شوروي پوځ د وتلو لپاره زمينه برابره شي. تردې څو ورځې وروسته د شوروي اتحاد سياسي بيرو يو قرارداد پاس کړ چې په هغو کې ويل شوي وو چې له افغانستان نه شوروي پوځونه بايد چټک راووزي.

د نومبر په پيل کې کارمل اعلان وکړ چې په حکومتي تشکيلاتو کې به پراخوالی راولي، بيا يې د صدراعظم مرستيال، د وزارتونو په معينيتونو اونورو  وزارتو نو کې غير کمونيست کسان وګومارل، خو دا هر څه هسې د ښودنې لپاره وو او اصلي واک بيا هم له کمونستانو سره ؤ.

شوروي مشرتابه پردې اجرأتو قناعت ونه کړ، د شوروي پوځونو د وتلو پر مهالويش له خبرو اترو نه د کارمل انکار د دوی اندېښنه نوره هم زياته کړه. د ۱۹۸۶ز د مارچ پر ۳۰مه کارمل د درملنې لپاره مسکو ته ورسيد، هغه څو رنګه روغتيايي ستونزې درلودې، په مسکو کې د هغه د يوې مياشتې هستوګنې په موده کې، کې جي بي ده ته په زغرده وويل چې نور بايد له واکه لاس پر سر شي. او د خلق ديموکراتيک ګوند د عمومي منشي له مقام هم بايد استعفا ورکړي، يوازې د انقلابي شورا د مشر په توګه پاتې کيدای شي.

* * * *

د مې پر لومړۍ کارمل بېرته کابل ته راستون شو، دلته د کې جي بي د لومړي رياست مشر ولاديمير الکساندر انډرووچ پرلپسې پرې فشار راوړ چې استعفا ته چمتو شي. د مې پر څلورمه کارمل د استعفا اعلان وکړ او وې ويل چې د شوروي اتحاد د نړيوالو ګټو له لامله دا کار کوي، د ده پر ځای د خاد رئيس جنرال نجيب وټاکل شو. د کارمل له استعفا سره شوروي اتحاد د دې جوګه شو چې د جينوا د خبرو په نوي پړا کې د پوځيانو پر ستنېدلو خبرې وکړای شي. د ۱۹۸۶ز په وروستۍ نيمايي کې د سټينګر توغنديو لومړی بار پاکستان ته را ورسيد، سي آی اې پرېکړه کړې وه چې دوی به هر کال ۱۲۰۰ توغندي او ۲۵۰ لانچرونه چمتو کوي.

په جون کې آی اس آی لس تنه پاکستاني پوځي منصبداران د يوه ټيم په بڼه د اتو اونيو د روزنيز پروګرام لپاره واستول دوی يو روزنيز مرکز په

اوجړې کمپ کې هم جوړ کړ. دلته یې د بېلابېلو مجاهدینو لپاره د درې درې اونیو روزنیز پروګرام جوړولو ترتیبات ونیول.
افغانستان ته چې تر ټولو وړاندې ستېنګر ورسیدل له هغو څخه شپږ توغندي د انګلستان د استخباراتو ۲۲ اېس اې اېس(اوسنۍ اېم آی ٦) یوه پخواني غړي ورسره یووړل. هغه وروسته بیا یو کتاب (شوټنګ ګیلري) د ګاز هنټر په مستعار نامه ولیکه، هغه وایي چې افغانستان ته له تلو وړاندې یې دی او د روزونکیو ټیم، د منځني ختیځ په یوه هیواد کې د جمعیت اسلامي د احمد شاه مسعود ۱٦ قوماندانانو ته د روزنې ورکولو لپاره وګومارلو، روزنیز کورس د شپږو اونیو لپاره ؤ چې پر نورو سربېره د ستېنګر توغندیو ویشتل هم پکې شامل وو، هنټر او د ده ټیم ته روزنه ورکړای شوه.
له هغه ځایه هنټر برتانیې ته ستون شو، بیا ورسره اړیکه ونیول شوه، چې شپږ ستېنګر توغندي ورسره واخلي او د احمد شاه مسعود له یوه ګروپ سره همکاري وکړي.
د پاکستان له کرښې نه تر اوښتلو وروسته هنټر په پنجشیر کې له یوه شل کسیز فعال ګروپ سره یو ځای شو او پر یوه کاروان یې په برید کې ورسره برخه واخیسته، تر هغه وروسته یې ځینو چریکانو ته د ستېنګر د استعمال په ورښودلو لاس پورې کړ، په هغو کې شپږ تنو وړتیا وښودله. هغوی یې په دافع هوا ګروپ کې ونیول، دوی ته یې د توغندیو د نصبولو، هوایي ډګرونو او هوایي کرښو ته نږدې د سنګر نیولو او د برید کولو چلونه ور وښودل. پردې سربېره یې دا هم ورته وویل چې څه ډول ځان الوتکو ته د نښې په توګه ور وښیي او الوتکې په خپل دام کې را ایسارې او رانسکورې

کړي. یا پر ځمکني پوځ برید وکړي او هغوی د هوایي ځواک راغوښتلو ته اړ کړي، یوه لاره یې دا وه چې پر کومه الوتکه پر درانه ماشیندار ډزې وشي او چې کله الوتکه پر دوی غوټه ووهي نو سټینګر پرې ور خوشي کړي.

نږدې درې اونۍ وروسته، دې ګروپ د سټینګر لومړي عملیات وکړل، نښه د درې په منځ کې د شوروي د اکمالاتو لپاره ګومارل شوې درې الوتکې وې. مجاهدینو په دره کې جعلي ګروپ وګوماره چې دغه الوتکې برید پرې وکړي، وروسته له هغو څخه یوې الوتکې ناڅاپه په ټیټ پرواز پر هغو برید وکړ او تر څو پرې سټینګر برید کیدو بېرته لاړه. له دې لومړۍ ناکامۍ نه وروسته ټیم د کابل په لور روان شو، سبا ته یې یو بل ځای بیا مورچل ونیو. خو دغه مهال شوروي پوځیان د سیمې د تالاشۍ لپاره راووتل چې نږدې ؤ دغه ټیم پکې راښکیل شي، تردې وروسته د چریکانو قوماندان پرېکړه وکړه چې د کابل پر هوایي ډګر د برید لپاره یو ګروپ واستوي، هنټر له دې ګروپ سره په برید کې د ګډون اجازه ونه مونده خو د عملیاتو په پلان جوړولو کې یې مرسته وکړه، هغه روزل شوي کسان او اته تنه مجاهدین کابل ته روان شول، دوې اونۍ وروسته د جولای پر لومړۍ یوه روسي انتونوف اې ان ۲۶ترانسپورتي الوتکه چې یو ګروپ پوځیان یې وړل، د کابل له هوایي ډګره والوته او بیا راوغورځول شوه، دا د سټینګر لومړني عملیات وو.

هنټر او د ده ګروپ چې شپږ توغندي پنجشیر ته ورسره وړي وو، د احمدشاه مسعود ګروپ ته نور توغندي ورنکړای شول، د امریکایي پوځ د شوروي اتحاد د چارو کارپوه ډګرمن سکاټ مک مکایل په خپل کتاب

## د سي آی اې پټې جګړې

(لسټمبلنګ بئیر... سوویت ملټري پر فارمنس ان افغانستان) کې لیکلي چې:

له دریو څخه دوې برخې سټېنګر توغندي پاکستان پر مجاهدینو وویشل چې لویه برخه یې د حکمتیار حزب اسلامي او نورو بنسټپالو ګروپونو ته ورکړه، احمدشاه مسعود ته یې هیڅ توغندي ورنکړل، د شارټ په قول دغه توغندي مسعود د پکتیا له مجاهدینو وپیرل، مک مکایل تور لګوي چې سي آی اې کوم توغندي آی اس آی ته ورکړل د هغو درېیمه برخه ورک شول، ځینې یې پاکستان د ټکس (مالیې) په دود پخپله وګرځول، نور یې مجاهدینو وپلورل او یا د شوروي او افغان پوځونو لاس ته ورغلل.

د سټېنګر توغندیو له لامله د شوروی هوایي ځواکونو فعالیت محدود کړای شو. پیلوټانو له ډېرې لوړې فضا څخه بمباري کوله، زیاتره به یې د شپې مهال بمباري کوله، د مجاهدینو د اکمالاتو کاروانونه زیات شول او په لویه کچه یې بریدونه پیل کړل. خو د ادعاؤ برعکس په جګړه کې د راغورځول شویو الوتکو او څرخیو زیات شمېر د سټېنګر په سبب رانسکورې نه شوې، د سکاټ مک میکایل په اند د سټېنګر له راتلو مخکې تر ۱۹۸٦ز پورې د شوروي اتحاد ٦۰۰الوتکې او څرخۍ رانسکورې شوې وې، دا یا په پېښو کې را لویدلې وې او یا بیا د چینایي داشکو (ډي اس ایچ کې) په ډزو کې راغورځیدلې وې، روسانو پردې اعتراف کاوه چې له مجاهدینو سره دا تر ټولو اغیزمنه الوتکو ضد وسله ده.

په ۱۹۸٦ز کې او تر هغو وروسته کلونو کې د شوروي الوتکو زیان زیات شو، د کال له ۴۳۸ څخه ۵۴۷ الوتکو ته ورسید، د دوی د ویجاړیدو د

لاملونو په اړه د نظر اختلاف دی چې په دې کې یې ځومره د تخنیکي خرابۍ او یا د پیلوټ د غلطۍ له لامله لویدلې دي. د مک میکایل په قول د ویتنام په جګړه کې له منځه تللې شل سلنه امریکایي څرخۍ د فني خرابۍ په سبب تباه شوې، او دا خبره باید په پام کې ولرو چې د افغانستان موسمي وضعه تر ویتنام سخته ده، د ده په قول د جګړې په لومړیو دوو کلونو کې له ۷۵-۸۰سلنه الوتکې د تخنیکي ستونزو له امله لویدلې او تباه شوې دي. ډېرې الوتکې د ځمکنیو بریدونو او باروتو په الوزولو سره له منځه تللې دي، سره له دې چې مجاهدینو الوتکو ضد داشکې ډېرې درلودې، د اتیایمې لسیزې په نیمایي کې د شوروي الوتکو په زیانونو کې ډېر لږ زیاتوالی راغی، خو له ۱۹۸٦ز وروسته زیاتره الوتکې د مجاهدینو د الوتکو ضد وسلو او توغندیو په ډزو کې راغورځیدلې دي، د هغه د اټکل له مخې د ټولې جګړې په بهیر کې د شوروي اتحاد له ۱۳۰۰-۱۵۰۰ وزره الوتکې له منځه تللې، په ۱۹۸۹ز کې له دولت څخه د را اوښتي یوه پیلوټ په قول د افغان هوایي ځواکونو ۹۷۵وزره او د شوروي اتحاد ۱۷۰۰ الوتکې له منځه ولاړې.

د سټېنګر توغندیو د اغیزمنتوب په اړه هم اختلافونه دي، له جګړې وروسته د امریکا د یوې ارزونې له مخې پر هدف د توغندي د لګیدو اندازه ۵۰ سلنه او د یوې سرچینې په قول ۷۹سلنه وه، د ځینو هغو مبصرینو په اند چې له نږدې یې د مجاهدینو عملیات لیدلي دي، ۵۰ سلنه اټکل ډېر حقیقت ته نږدې ښکاري، حقیقت دادی چې امریکا یوازې د ۳۰ سلنه وړتیا هیله درلوده.

*　　　　*　　　　*　　　　*

په ۱۹۸٦ز کې مجاهدینو تر سرحد پورې غاړه په تاجکستان او ازبکستان کې هم عملیات وکړل، د ډګروال یوسف په قول، د دې پلان بنسټ د سي آی اې مشر ویلم کیسي کېښود. د ۱۹۸۴ز په اوږدو کې دغه عملیات یوازې تر رواني جګړې پورې محدود وو، چې د آی اس آی په اهتمام د مجاهدینو د شمال ګروپونه به تر آمو پورې وتل او په ازبکستان کې به یې د شوروي پوځیانو د ظلمونو په اړه لیکلي کتابونه ویشل، دوی د قرآنکریم لس زره ټوکه هم وویشل، په ۱۹۸۵ز کال کې آی اس آی پر آمو سیند جوړ شوي، د دوستۍ پله د الوزولو پلان جوړ کړ چې زر متره اوږدوالی لري. دغه پل د ترمذ لویدیز لور ته اوه نیم میله لرې جوړ شوی او د افغانستان او ازبکستان ترمنځ د موټرو او ریل ګاډي لار پرې تېره ده، له همدې ځایه د تېلو نل لیکه هم تېره شوې وه، خو د جنرال ضیاء الحق په حکم دغه پلان ودرول شو، ځکه چې د دې خطر ؤ چې شوروي به په توند غبرګون کې پر پاکستان برید وکړي.

راتلونکی کال مجاهدینو ته د ریل ګاډي د کرښې او ریل ګاډي د له منځه وړو ځانګړې روزنه ورکړای شوه. وروسته بیا تر آمو پورې غاړې ته د ریل پر کرښو څو ځلې بریدونه وشول، پردې کرښه له سمرقند نه ترمذ ته باروړونکي ریل ګاډي تلل راتلل، څو بریدونه بریالي وو، خو دوې حملې ناکامې شوې، داسې فکر کیږي چې روسان له هغو څخه مخکې خبر شوي وو، د برتانیې لخوا د باروتو د ماینونو په واسطه د موټرو له منځه وړو لپاره هم یو شمېر عملیات وشول. د شوروي پوځ پر سرحدي پوستو هم بریدونه

**وشول، مجاهدینو د دې پوستو ترمنځ پر لارو او سرکونو هم ماینونه وغوړول، د دوی د تیلفون او برېښنا مزي به يې وشلول، لوی لوی تاسیسات يې هم نښه کړل.**

**د ۱۹۸٦ز په دسمبر کې ۳۰ تنه مجاهدین پر آمو پورې وتل، د تاجکستان پر دوو برېښنا بندونو يې بریدونه وکړل، ډېری دغسې بریدونه د راکټ لانچرونو په واسطه کیدل چې له ۵تر اوه نیم میله پورې يې هدف ویشتلای شوای.**

**په دې بریدونو کې چې کوم اهداف وویشتل شول په هغو کې د پیاندزه نومي ښار په اطرافو کې یو هوايي ډګر، او د شرکان او نزني پیاندزه ترمنځ د تیلو د تصفیې یوه کارخانه هم وه.**

**دغه بریدونه د ۱۹۸٦ز او ۱۹۸۷ز کلونو په اوږدو کې روان وو، د اپریل په پیل کې له ترمذ شخه ۱۵ میله شمال لویدیز لور ته د شروب په ساحه کې پر یوه هوايي ډګر د راکټونو درنه حمله وشوه، دغه مهال د مجاهدینو یوه بل ګروپ د ترمذ او تاجک برید ترمنځ پر یوه پوځي کاروان برید وکړ پینځه موټر يې له منځه یوړل او یو شمیر روسي پوځیان يې ټپیان او ووژل.**

**د اپریل په نیمايي کې په ازبکستان کې ۱۲ میله دننه د فابریکو پر یوه کمپلکس برید وشو، دغه کمپلکس د آمو سیند په شمال کې قرغان تیپه ښار ګوټي ته نږدې پروت دی، چې په لوی شمېر کارخانې، د ریل تاسیسات، برېښنا کوټ، او هوايي ډګر پکې شامل دي. له برید کوونکي ګروپ سره دوه لانچرونه او ۳۰ مرمۍ وې، دوی هدف ته نږدې په یوه ځای کې پټ شول. دغه ځای د میاشتې په پیل کې د دوی قوماندان او د هغه**

د وو ملګرو ورته ټاکلی ؤ چې دلته مخکې راغلي وو. له پينځه ميله واټن څخه دوی پر هدف د راکټونو ډزې پيل کړې، ۲۰ چاودنې وشوې او يو شمېر ودانيو ته سخت زيان ورسيد، ټول مجاهدين له هغه ځايه تر سهار مخکې بېرته راووتل، د روسانو غبرګون ډېر توند ؤ. د دوی څرخيو د آمو سيند په جنوب کې د امام صاحب شاوخوا ته سخته بمباري وکړه او ډېر کلي يې وران کړل.

راتلونکې شپه مجاهدين له سينده پورې وتل او د امام صاحب په لور روان شول. په دې موده کې يې د قوماندان پښه پر ماين وربرابره شوه او غوڅه شوه، په راتلونکيو شپږو ورځو کې شوروي الوتکو پر دوی څو ځلې سختې بمبارۍ وکړې، چې په هغو کې يې څلور تنه ملګري نور هم ټپيان شول، خو له څو اونيو مزلونو وروسته دغه ګروپ پاکستان ته ورسيد.

شوروي اتحاد د دې بريد په غبرګون کې پاکستان ته ګواښ وکړ چې که بيا داسې بريد تکرار شي نو ډېرې ناوړه پايلې به ولري، امريکا او پاکستان پرېکړه وکړه چې نور به داسې بريدونه نه کيږي.

* * * *

په افغانستان کې د ۱۹۸۷ز د دوبي په موسم کې دولتي پوځ له لويو ماتو سره مخ شو، په مې او جون کې د کندهار پر ارغنداب چې کوم بريد وشو هغه له سختې ماتې سره مخ شو. د پکتيا پر ځائيو هم يو يرغل سخت ناکام شو، په دې موده کې روسان وپوهيدل چې په شنه آسمان کې ستېنګر خپل هدف ښه ويشتلی شي، خو که الوتکه ټيټ پرواز وکړي نو بيا د ستېنګر د حرارتي وړانګو لټوونکی نظام، د شاوخوا تاوجنو ګړنګونو په

تودوخه کې راښکیل کیږي، ځکه خو د دوی ترانسپورټي او ځرخیو الوتکو ټیټې الوتنې پیل کړې، خو د دې پایله دا شوه چې نه یوازې دغه الوتکې د مجاهدینو د درنو ماشیندارو دم ته راغلې، بلکې پردې سربېره له غرونو سره د ټکر امکانات یې هم ډېر شول چې له دې سره یې د عملیاتو ورتیا محدوده شوه.

د ۱۹۸۷ز په جون کې مجاهدینو د کابل-جلال آباد د لارې بندولو لپاره د عملیاتو پرېکړه وکړه، راتلونکې میاشت په شمال کې احمدشاه مسعود په تخار کې د کلفګان پر ګارنیزیون برید وکړ، د دې برید لپاره هغه له څو اونیو راهیسې سخته تیاري نیولې وه، د جولای پر ۱۴مه یې د ګارنیزیون د پینځو پوستو پر دفاعي کرښې د توغندیو باران پیل کړ، په دې باران کې د ګارنیزیون توپخانه فلج شوه، دې ته نږدې د روسانو پر توپچي قوا د مسعود یوه بل ګروپ برید وکړ او هغوی یې هلته بوخت وساتل او له افغان ځواکونو سره یې مرسته ونکړای شوه.

لږ څنډ وروسته د مسعود جنګیالیو مینونه ټول کړل او ځمکنۍ حملې ته یې لاره پاکه کړه، ځمکنۍ حمله پیل شوه او په یوه ساعت کې یې پینځه واړه پوستې لاندې کړې. تردې وروسته یې د ګارنیزون دفاعي مورچلونه هم مات کړل، ماښام له زیاتو پوځي وسایلو او یو شمېر بندیانو سره بېرته ستانه شول.

د ۱۹۸۷ز په وروستیو کې خوست یو ځل بیا کلابند کړای شو، مجاهدینو د هوا له لارې د مرستو اکمالات د سټېنګر توغندیو په واسطه پر خوست ودرول. شوروي پوځونو د خوست چونۍ ته د مرستو رسولو لپاره ۲۰ زره

عسکر ګردیز ته ورسول، له دې سره وروسته څو فرقې افغان پوځ هم یو ځای شو، د هوايي عملیاتو لپاره پر ترانسپورتي او ګنشپ څرخیو سربېره اس یو ۲۵فراګ فټ ډوله بمبارد الوتکو دوه کنډکونه له شوروي اتحاد څخه راوغوښتل شول، دغه د مرستو او اکمالاتو عملیات د (مسترال) په نامه د نومبر په وروستیو کې پیل شول، دوو افغان فرقو د شوروي د هوايي ځواکونو د یوه کنډک په بدرګه له ګردیز نه د خوست په لور پرمختګ پیل کړ، په پیل کې مجاهدینو ډېر کلک مقاومت وکړ، په ځواب کې روسانو هوايي ځواک بېدریغه وکاراوه، سوخو ۲۵الوتکو له ډېرې جګې فضا څخه بمبارۍ کولې، په دې موده کې یوې افغان لوا له ارګون څخه د خوست په لور پرمختګ پیل کړ چې له شمال لوري په دواړو درو کې د مجاهدینو لاره غوڅه کړي، خو مجاهدینو له وخت وړاندې دغه خطر درک کړ او له درو ووتل.

روسي پوځونو د شپې له لوري د هلیکوپترو په واسطه یو غونډ کوماندویان ښکته کړل چې د میراجان په نامه سیمه ونیسي، چې د خوست-ګردیز د لارې د غرونو په جنوبي اړخ کې پرته ده (په اصلي متن کې د میراجان ښار په نامه یاد شوی، چې اصلاً د ګوتو په شمار یو څو دوکانونه او هوټلونه وو چې د مجاهدینو کاروانونه به پرې تېریدل او د میراجان دوکانونه یادیدل، زه د مجاهدینو له کاروانونو سره څلور ځله په دې لاره تیر شوی یم، یو ځل چې له وردګو پېښور ته روان وو ماسپښین مهال مو دلته لمانځه او د غرمې ډوډۍ ته واړول، د دښمن دوې جیټ الوتکې راغلې، تر سلو زیات مجاهدین وو شاوخوا ته سره تیت او پټ شول، الوتکو درې لوی بمونه

وغورځول، پارچې او ډبرې يې زموږ تر سرونو واوښتې، اسونه، يا بوګان تر سلو زيات مجاهدين او د ځدرانو د همدې سيمې د دوکانونو په لسګونو تنه ځايي کسان له دې بمبارۍ ټول خوندي پاتې شول. (ژباړن)
يو بل غونډ په خوست کې پلی کړای شو چې کلابندي يې ماته کړه او د ګرديز په لور يې د شمال لور ته پرمختګ پيل کړ.
مجاهدينو دغه مهال د خوست-ګرديز پر سرک زيات ماينونه ښخ کړي وو او له هغه ځايه ووتل، زغروالو ټانګونو او زره پوښونو د جنوب پر لور پرمختګ ته دوام ورکړ، چې د ماينونو او مجاهدينو د توغنديو د ډزو له امله يې پرمختګ ډېر کرار ؤ، بالاخره د دوی اړيکه له خوست څخه د شمال په لور له خوځيدليو ګروپونو سره ټينګه شوه، او د دسمبر پر ۲۰مه د مرستندوی پوځ لومړني ګروپونه ښار ته ننوتل.
د جګړې د پايته رسولو لپاره خبرې اترې له ۱۹۸۲ز څخه روانې وې، دغه خبرې د ملګرو ملتونو تر څارنې لاندې د افغانستان او پاکستان د حکومتونو ترمنځ بالواسطه روانې وې، دغه پروسه له دې لامله ډېره پېچلې او لانجمنه وه چې د پاکستان حکومت د کابل حکومت په رسميت نه پيژاند، ملګرو ملتونو منځګړتوب کاوه، ډيګو کور دوويز د هغوی ځانګړی استازی وټاکل شو، د ژنيو خبرې اترې اوږدې او پېچلې دي، تفصيل يې ډيګو کوردوويز له ژورناليست سليګ هريسن سره په ګډه ليکلي اثر (د افغانستان د جګړې، د پردې تر شا حقايق) کې راوړی دی. د ۱۹۸۷ز په وروستيو او د ۱۹۸۸ز په لومړيو وختونو کې د ژنيو د تړون په وړاندې تر

ټولو ستر خنډ د پاکستان په دننه د ولسي کړیو کې دا اختلاف ؤ چې له جګړې وروسته به په افغانستان کې څه ډول حکومت منځته راځي.
آی اس آی چې د جنرال ضیاءالحق د واکمنۍ په موده کې یې ځواک او نفوذ ډېر پراخ شوی ؤ، پرېکړه یې کړې وه چې په کابل کې باید د بنسټپالو جهادي ډلو حکومت جوړ شي، هغه مهال د آی اس آی مشر جنرال حمید ګل ؤ چې سخت دریځه اسلامپال نظریات لري، خو د پاکستان نوي نومول شوي صدراعظم محمد خان جونیجو او د بهرنیو چارو وزیر یعقوب خان بیا غوښتل چې په نوي حکومت کې باید د جلاوطن پاچا ضاهرشاه رول وي چې هغه د شوروي اتحاد لپاره هم د منلو وړ ؤ، قومپالو او له کمونستانو پرته نورو ډلو هم د هغه ملاتړ کاوه، که څه هم ضیاءالحق یعقوب خان ته دا اجازه ورکړه چې دغه نظریه د روسانو تر غوږ ورتېره کړي، خو بیا ضیاءالحق او آی اس آی دا ناکامه کړه، جنرال ضیاء د روسیې د بهرنیو چارو له وزیر اناتولي کوول یوف سره په لیدنه کې پر هغه فشار راوړ چې په کابل کې باید بنسټپال اسلامي حکومت جوړ شي.
د ۱۹۸۸ز په لومړیو کې پاکستان له سیاسي بې ثباتۍ سره مخ شو، د ضیاالحق او جونیجو تر منځ د اقتدار پرسر کشمکش پیل شو، جنرال ضیاءالحق، یعقوب خان برطرف کړ او د بهرنیو چارو وزارت دنده یې په خپل لاس کې واخیسته او د کلنۍ بودیجې د تصویب پر مهال یې د خپل نفوذ اعمال وښود، تر اوسه پورې جنرال ضیاالحق د روسانو د دې غوښتنې په وړاندې چې، له کابل نه د پوځونو وتل باید د ګډ حکومت پرسر د پاکستان او امریکا له توافق سره تړلي وي له امریکا سره ملګری ؤ، خو اوس

یې ناڅاپي خپل دریځ بدل کړ او اعلان یې وکړ چې پاکستان به تر هغو د ژنیو پر تړون لاسلیک ونه کړي تر څو مسکو نجیب له واکه لرې نه کړي او پردې توافق ونه کړي چې په کابل کې به د هغو اوو جهادي ګوندونو په خوښه لنډ مهاله حکومت جوړیږي چې په پاکستان کې دي، دوی وویل چې کابل حکومت ته د غیر کمونستو ډلو په منځګړتوب وړوکې نمایندګي ورکولای شو چې د خلق دیموکراتیک ګوند ته د منلو وړ وي او ښه مسلمان وي، هغه دا هم وویل چې یوه دیرش کسیزه شورا باید جوړه شي چې ۱۲تنه غړي یې ښه سوچه مسلمانان وي.

د ضیالحق او جونیجو ترمنځ د ځواک پرسر لانجه تونده شوه، په مارچ کې هغه مهال دې سیالۍ د ټکر بڼه خپله کړه چې د ۱۹ سیاسي ګوندونو په کنفرانس کې له جماعت اسلامي او دوو نورو بنسټپالو ګوندونو پرته، نورو پریکړه وکړه چې د ژنیو تړون باید لاسلیک شي. د پاکستان کابینې هم دغسې نظر ورکړ، چې غونډه یې د مارچ پر ٦مه ماښام مهال وه، په دې کې له یوه وزیر پرته نورو ټولو د تړون د لاسلیک په پلوی رایه ورکړه.

د خپل حکومت له لوري له داسې مخالفت او د امریکا او شوروي اتحاد د مخالفت له امله ضیاالحق ته د تړون له لاسلیک پرته بله چاره نه وه، چې د اپریل پر ۱۴مه پرې لاسلیک وشو، خو جنرال ضیا ٦ اونۍ وروسته خپل کسات واخیست، جونیجو یې برطرف کړ، خو پایله دا شوه چې پاکستان له بحران سره مخ شو. د ګرمۍ په موسم کې دی پخپله له سیاسي صحنې څخه ورک شو. د اګسټ پر ۱۷مه د پاکستان د هوایي ځلن هر کولس ۱۳۰ سي، وي آی پي ترانسپورټي الوتکه له بهاولپور څخه اسلام آباد ته د راتلو

په لاره کې راوغورځيده او له منځه لاړه، په دې کې جنرال ضيالحق، جنرال اختر عبدالرحمان، د امريکا سفير ارنولډ رافيل، او جنرال هربرټ واسم چې په پاکستان کې يې دامريکا د پوځي اتشه دنده درلوده، هم سپاره وو.

د پاکستان د تحقيقاتو بورډ او امريکايي کارپوهانو له څیړنو وروسته دا پايله واخيستله چې د الوتکې عمله د کوم ډول کيماوي غاز په کارولو سره فلج کړای شوي دي خو د مجرمينو هيڅ درک معلوم نشو.

د ضيالحق او اختر عبدالرحمان وژل کيدل، مجاهدينو ته ډېر لوی تاوان ؤ، خو د شوروي پوځونو پر بېرته ستنيدو يې کومه اغيزه ونه کړه، د شوروي پوځونو وتل د مې پر ۱۵مه پيل شوي وو، د روسانو ٦٦م پلی غونډ له جلال اباده کابل ته او له کابله د خيرخانې له لارې پر سالنګ ور واوښت او څلور ورځې وروسته د حيرتان له لارې له سرحده واوښتل او شوروي اتحاد ته ننوتل، د وتلو پر مهال په افغانستان کې د شوروي اتحاد د پوځونو شمېر يو لک او درې سوه تنه وو، مجاهدينو نه غوښتل چې د شوروي پوځونو د وتلو لاره بنده کړي، خو دا احساس يې ورکاوه چې دوی شته دي. د جون په نيمايي کې دوی د غزني او کابل ترمنځ لويه لاره وتړله، له دې لامله، شوروي پوځ کنډکونو او ډلګيو د وتلو لپاره ډېره اوږده لاره غوره کړه، په اګسټ کې مجاهدينو د بغلان په کيله ګی دښته کې د شورويانو پر يوه لويه پوځي ډېپو سخت توغندي ور واورول او دغه ډيپو يې والوزوله او بشپړه له منځه لاړه.

د نومبر په پيل کې شوروي پوځونو د لنډ مهال لپاره د وتلو بهير ودراوه، او له جلال آباده يې ختيځ لور ته د وړاندې تلو په حالت کې له افغان پوځ

سره کلکه د هوايي ځواک بدرګه ملګرې کړه او توغندي يې ورکړل، تردې وروسته يې د وتلو بهير بيا پيل کړ او د راتلونکي کال تر فبرورې پورې يې دوام درلود.

کله چې وروستی پوځي په افغانستان کې د شوروي پوځونو قوماندان، جنرال بوريس ګروموف د دوستۍ پر پله ازبکستان ته واوښت، نو پر افغانستان د شوروي اتحاد پوځي تيری هم پای ته ورسيد، په څه باندې نهه کلونو کې د شوروي پوځونو ۱۳۳۱۰ تنه ووژل شول، ۳۵۴۷۸ تنه ټپيان او ۳۱۱ تنه بې درکه شول. د مجاهدينو د سر د زيان کوم شمېر او حساب نشته، خو له دوه نيم لکه تنو تر لس لکو پورې بېلابېل اټکلونه شوي دي.

د شوروي پوځ له وتلو سره په افغانستان کې امن رانغی، د کابل حکومت پر خلاف جګړې دوام وکړ، د ۱۹۸۹ز د مارچ په پيل کې مجاهدينو بې وخته جبهه يي جګړه پيل کړه او د جلال آباد د نيولو لپاره يې بريد پيل کړ. دوی غوښتل چې جلال آباد يې د هغه عبوري حکومت مرکز شي چې د ۱۹۸۸ز په دسمبر کې په پېښور کې جوړ شوی ؤ، دوی فکر کاوه چې د جلال آباد له نيولو سره به د کابل نيول هم ورته آسانه شي.

په جلال آباد کې ۱۱مه فرقه پرته وه، شاوخوا ته يې د ماينونو غوړيدو له امله لاندې کول تقريباً ناممکن وو، پردې سربېره افغان پوځ له هوايي ځواک څخه زيات کار واخيست. د مجاهدينو پر مرکزونو له سختو بمباريو نه علاوه يې سکاډ توغندي هم وکارول، کله چې د ۱۹۸۹ز په سپتمبر کې کلابندي ختمه شوه نو شاوخوا لس زره تنه مجاهدين وژل شوي وو.

(په دې کې شک نشته چې د جلال آباد جګړه د آی اس آی پلان ؤ او سخته ناکامه شوه، خو د لس زره تنو مجاهدینو وژل کیدل ډېره لویه مبالغه ده. ژباړن)

راتلونکی کال په فبرورۍ کې د امریکا او شوروي اتحاد ترمنځ دا تړون وشو چې تر څو د ملګرو ملتونو تر څارنه لاندې انتخابات ونشي، نو د ډاکټر نجیب واکمني به دوام لري.

په می کې داکټر نجیب د ګڼ ګوندیز حکومت د نافذولو اعلان وکړ، خو مجاهدینو د هغه د سولې او تفاهم د ټولو پروګرامونو مخالفت وکړ.

په دې موده کې دواړو لویو ځواکونو پر ښکیلو لوریو د پوځي مرستو د بندولو لپاره خبرو اترو ته دوام ورکړ. شوروي اتحاد تر اوسه پورې کابل حکومت ته په لویه پیمانه وسلې ورکولې، د ۱۹۸۹ز په لومړیو شپږو میاشتو کې هغوی د اوه نیم میلیارد ډالرو مرسته ورسره وکړه چې په هغو کې ۵۰ سکاډ توغندي هم شامل وو، بل لوري ته بیا امریکا پر مجاهدینو مرستې ډېرې کمې کړې وې، د سپتمبر پر ۱۳مه په مسکو کې د امریکا د بهرنیو چارو وزیر جېمز بېکر او د شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر بوریس پانکن ترمنځ تړون لاسلیک شو او د ۱۹۹۲ز د جنوري پر لومړۍ دواړو لوریو مرستې بشپړې بندې کړې.

له جګړې وروسته د سي آی اې له لوري د چمتو شویو ستېنګر توغندیو زیاته برخه ورک شول، سي آی اې هڅه وکړه چې دغه توغندي له مجاهدینو څخه بېرته وپیري خو ډېر لږ په دې بریالي شول، د ۱۹۹۰ز په نیمایي کې دغه توغندي په تور بازار کې یو میل په یو لک ډالره پلورل

کیدل. په ایران کې چې د مجاهدینو له یوه کاروان څخه د ستېنګر توغندیو یو شمېر نیول شوي وو، خاینو افسرانو په تور بازار کې هغه یو میل په درې لکه ډالرو پر قاچاقبرانو پلورل، هغوی غوښتل له حکومتي څرخیو نه د ژغورنې لپاره یې لاسته راوړي.

وروسته بیا معلومه شوه چې د انجنیر حکمتیار د حزب اسلامي قوماندانانو ۱٦ ستېنګر توغندي د ایران د انقلاب پر پاسدارانو پر یو ملیون ډالره پلورلي دي. سي آی اې دومره اندېښمنه وه چې له کانګرس نه یې لس ملیونه ډالره منظوري واخیستله چې دغه توغندي بېرته پرې وپیري، خو هیڅ ګټه یې ونه کړه، تردې مهاله د دې توغندیو یوه زیاته برخه د دوی له لاسه وتلي وو، او د وسلو په تور بازار کې تر لرې لرې پورې رسیدلي وو.

په جګړه کې د سي آی اې له لوري د چمتو شویو ستېنګر توغندیو ریښتینی شمیر، د اکمالاتو په لارو کې د خورد او برد شویو توغندیو شمېر، او د هغو توغندیو شمیر په باب چې بالاخره تور بازار ته رسیدلي دي، هیڅ حساب کتاب معلوم نه دی، همدومره ویل بس دي چې سي آی اې د دې وسلې په چمتو والي کې له ډېر سخاوت څخه کار اخیستی ؤ د یو منصبدار په قول: (موږ د شیرنیو په څېر وویشل).

*　　　　*　　　　*　　　　*

د ۱۹۲۲ز په اپریل کې بالاخره نجیب له واکه لرې کړای شو، هغه مهال چې جنرال دوستم خپله وفاداري بدله کړه او خپله ازبکي ملیشه یې د ده د لرې کولو لپاره وکاروله، ډاکټر نجیب د ملګرو ملتونو دفتر ته پناه یووړه چې هلته یې تر څلورو کلونو پورې عملاً د یوه بندي په څېر ژوند وکړ.

## د سي آی اې پټې جګړې

ترډې وروسته له حزب اسلامي پرته د نورو ټولو جهادي ګوندونو مشرانو د پېښور پر تړون لاسلیک وکړ چې د هغو له مخې یوه عبوري اداره جوړېدله، حکمتیار دغه معاهده لاسلیک نه کړه، د جون په وروستیو کې برهان الدین رباني د افغانستان د ولسمشر په توګه وټاکل شو، په جولای کې د افغان جهادي ډلو ترمنځ په کابل کې جګړه ونښته، د ۱۹۹۲ز په دسمبر کې د پېښور د تړون پر خلاف برهان الدین رباني د دوو نورو کلونو لپاره د ولسمشر په توګه وټاکل شو که څه هم د راتلونکي کال په مارچ کې دغه موده اتلس میاشتو ته راکمه کړای شوه، د ۱۹۹۳ز په جون کې ګلبدین حکمتیار صدراعظم وټاکل شو، چې پردې د هغه سخت دښمن احمدشاه مسعود له دفاع وزارت څخه استعفا ورکړه، جګړه بیا پیل شوه. چې د ۱۹۹٦ز په اکتوبر کې طالبان راپورته شول چې تر اوسه پورې مشهور شوي نه وو. د ملامحمد عمر په مشرۍ دوی د کندهار شاوخوا سیمې ونیولې، راتلونکی کال په سپتمبر کې د دوی جنګیالیو د افغانستان په لویدیز کې ځینې سیمې د هرات ولایت په شمول فتحه کړې، ترډې وروسته کابل ته رانږدې شول او په اکتوبر کې یې پر کابل توغندي ویشتل پیل کړل. د ۱۹۹٦ز په پیل کې طالبانو ختیځ افغانستان تر برید لاندې ونیو، جلال آباد او ورپسې د سپتمبر پر ۲۷مه یې کابل هم ونیو، ترډې سمدستي وروسته دوی ډاکټر نجیب الله د ملګرو ملتونو له ودانۍ څخه راویوست او ویې واژه.

د ۱۹۹۷ز د مې پر ۲۴مه طالبانو مزار شریف ونیو، جنرال دوستم یوه اونۍ وړاندې د خپل یوه قوماندان جنرال عبدالملک له مخ اړولو وروسته ترکیې

ته تښتیدلی ؤ، سبا ته یې پاکستان، سعودي عرب او عربي متحده اماراتو د طالبانو امارت په رسمیت وپیژاند، خو د می پر ۲۸مه پهلوان مالک خپله وفاداري بیا بدله کړه. له حکمتیار سره یې اتحاد وکړ. له طالبانو سره له توندې جګړې وروسته یې هغوی له مزار شریف څخه وشړل. په دې جګړه کې زیات شمېر طالبان ووژل شول.

په جولای کې په مزار شریف کې د طالبانو مخالف حکومت جوړ شو. برهان الدین رباني یې ولسمشر او عبدالرحیم غفورزی یې صدراعظم او پهلوان عبدالملک یې د بهرنیو چارو وزیر وټاکه. تر دې وروسته د پهلوان ملک او مسعود ملیشو د هزاره جات له شیعه ملیشو سره په ګډه طالبان د کابل په لور ټېل وهل، طالبانو یو ځل بیا په سپتمبر کې پر مزار شریف حمله وکړه خو ناکام شول، ځکه خو د ۱۹۹۷ز په وروستیو کې پر افغانستان عملاً دوه حکومته مسلط وو یو د طالبانو د جنوب په پښتون اکثریت میشته سیمو چې کابل هم پکې شامل ؤ، بل د شمالي ټلوالې په نامه چې په شمال کې په تاجک، ازبک، ترکمن، او هزاره سیمو کې واکمن وو.

طالبانو دا ژمنه کړې وه چې هېواد به له فساد او انارشۍ څخه ژغوري، کله چې دوی په حکومت کې راغلل، ولس په پیل کې ډېر په جوش او جذبه د دوی هرکلی وکړ، خو ډېر زر دغه جوش او احساسات مړه شول، ځکه چې طالبانو اسلامي نظام نافذ کړ. ځوانانو ته یې د ږیرو پرېښودو حکم وکړ، ښځې یې له کار کولو منعه کړې، ښوونځي یې وتړل. او د درو وهلو، لاس غوڅولو او سنګسار شرعي قوانین یې پلي کړل، پر سندرو، پر کتابونو او هر ډول تفریح یې بندیز ولګاوه، افغانستان څو کاله وروسته بېرته منځنیو

پیړیو ته تللی ؤ. (دلته د لیکوال نظر یا په ناپامۍ او یا قصداً ډېر مغرضانه دی. افغان ولس د ریښتیني اسلامي نظام پر خلاف هیڅکله هم نه ؤ، د اسلامي نظام لپاره یې په لنډه ماضي کې ډېره درنه قرباني ورکړې وه، البته دا ریښتیا ده چې طالبانو په ځینو اړخونو کې افراط کاوه او همدې افراط ولس ناراضه او مایوس کړی ؤ، پردې سربېره د طالبانو واکمني یوازې پر پښتون میشتو سیمو نه وه، بلکې پر ۹۵سلنه هیواد یې واکمني کوله، خو په دې کې شک نشته چې ولس د دوی د ځینو افراطي کړو وړو څخه ناراض ؤ، دغه نا رضایت قومي نه ؤ بلکې عام ؤ. ژباړن)

*　　　　*　　　　*　　　　*

په افغانستان کې د سي آی اې د عملیاتو له پایته رسیدو پینځه کاله تېر شول، خو دوی دلته خپل خطرناک میراث پریښی ؤ، د جګړې له پایته رسیدو وروسته یو زیات شمېر ښو روزل شویو چریکانو ځانونه د مهاجرینو په کمپونو کې ولیدل.

دوی اوس نه د افغانستان په کار وو، نه د پاکستان او امریکا..په دوی کې د سعودي شتمن، اسامه بن لادن پیروان هم وو، چې نوموړی د مجاهدینو د راټولولو او دوی ته د پیسو چمتو کولو تر ټولو لوی شخص ؤ. د شوروي اتحاد له وتلو وروسته هغه د (القاعده) په نامه تنظیم جوړ کړ چې په پاکستان کې د سلګونو بهرنیو مجاهدینو مرسته وکړای شي.

پر ۱۹۹۱ز کې اسامه بن لادن خپل هیواد ته ستون شو، هلته یې د سعودي پر خاوره د امریکایي پوځیانو د شتون په مخالفینو کې تر ټولو ښکاره مقام ؤ. د هغه په غیاب کې پاکستان پرېکړه وکړه چې نور به مجاهدینو ته دلته

## د سي آی اې پټې جګړې

د پاتې کیدو اجازه ورنکړي چې تر اوسه پورې د سرحد ایالت(اوسنی پښتونخوا) په کمپونو کې اوسیدل، نور دوی ناخوښي میلمانه وو، پاکستان د دې مسالې د حل لپاره له سي آی اې څخه مرسته وغوښتله، خو هغوی هیڅ ونه کړل.

د پاکستان د صبر کاسه تر مورګو شوه، ګوابن یې وکړ چې د اسامه بن لادن او نورو ډلو مجاهدین به په اسلام آباد کې د امریکا په سفارت کې خوشي کړي.

ژورنالیست او د منځني ختیځ د چارو کارپوه عادل درویش وایي چې، سي آی اې پردې مساله له سعودي عرب او د عربو خلیج له نورو هیوادونو سره اړیکې ونیولې، پر هغوی یې فشار راوړ چې دې مجاهدینو ته پاسپورټونه ورکړي. دوی یې له بېلابېلو ځایونو څخه خپلو خپلو هیوادونو ته ورسول، ۹۰۰تنه دغسې مجاهدین الجزایر ته لاړل، هلته یې توندلاری اسلامي پوځي تنظیم (جي آی اې) جوړ کړ، چې له ۱۹۹۰ز وروسته یې ویره او وینې تویونه پیل کړه، ځینې نور یې مصر ته لاړل، هلته یې له هغو ګروپونو سره ملګرتیا پیل کړه چې غوښتل یې د حسني مبارک واکمني راچپه کړي. ځینې یې بوسنیا ته لاړل او د صربي پوځیانو پر خلاف یې له مسلمانانو سره واړول، ځینې یې لبنان، آذربایجان او چیچینیا ته لاړل چې پلازمینه ګروژنې د مجاهدینو د تګ راتګ په مرکز بدل شو، د عبدالرسول سیاف کسان فلیپین ته ورسیدل.

ډېر مجاهدین د اسامه بن لادن په القاعده تنظیم کې شامل شول چې له لویدیز سره یې د جګړې لپاره تیاری نیولو، هغه په ټوله نړۍ کې د اسلامي

ترهګرو یوه شبکه جوړه کړې وه، امریکا یې تر ټولو ستر هدف ؤ، پر ۱۹۹۲ز کې یې پرې لومړی برید وکړ، د دسمبر پر ۲۹مه د یمن د عدن په بندر کې په هغه هوټل کې یو بم وچاودید، چې امریکایانو سومالیې ته د تګ راتګ پر مهال د هستوګنې لپاره ترې کار اخیست. دوه امریکایي سیلانیان په چاودنه کې ووژل شول. دغه مهال د عدن پر هوایي ډګر د ترهګرو یوه ډله هم ونیول شوه چې غوښتل یې پر یوه امریکایي الوتکه ډزې وکړي.

څو میاشتې وروسته، ترهګرو په امریکا کې د امریکا پر خلاف برید وکړ، په ۱۹۹۳ز د فبروری پر ۲۳مه د نیویارک د سوداګریز مرکز لاندې د موټرو په پارکنګ کې یو لوی بم وچاودید. په دې برید کې شپږ تنه ووژل شول او زر تنه نور ټپیان شول، زیاتو ودانیو ته هم زیان واوښت، څلور تنه توندلاري اسلامپال، محمود ابوحلیمه، محمد سلامه، احمد عجاج او ندال ایاز ونیول شول، پر ۱۹۹۴ز د مې پر ۲۴مه پرې عمري بند سزا وختله.

په دې معاملو کې تر اوسه د اسامه بن لادن د نیغ لاس درلودو اسناد نه دي موندل شوي، خو پر هغه کلکې بدګوماني کیږي چې همده په بریدونو کې مرسته کړې ده، وروسته له پلټنو څخه دا معلومه شوه چې بم جوړوونکیو ته له هغو تیلفوني نومرو زنګونه راتلل چې له اسامه بن لادن سره یې اړیکې درلودې.

د بمي چاودنې پلان جوړوونکی رمزي احمد یوسف تښتیدلی ؤ، د هغه په اړه د ۱۹۹۴ز د مارچ تر ۱۴مې پورې هیڅ معلومات نه کیدو چې د تایلنډ په پلازمینه بنکاک کې یې د یوه برید هڅه وکړه، هغه یو لوی بم په یوه کرایي واګون موټر کې کېښود او غوښتل یې د امریکا یا اسرائیلو سفارت

ته يې يو سي، خو په لاره کې له دوو نورو موټرو سره ټکر شو، ترهګرو موټر پر ځای پرېښود او وتښتيدل. درې ورځې وروسته د واګون مالک د خپل موټر د ترلاسه کولو لپاره له پوليسو سره اړيکه ونيوله، چې بيا له موټر نه د چلوونکي مړی او بم راپيدا شول، چلوونکی ترهګرو غرغره کړی ؤ او وژلی يې ؤ، پر بم د رمزي يوسف د ګوتو نښې وې، خو تر دې مهاله پاکستان ته په تېښته بريالی شوی ؤ.

د يوسف بل ماموريت چې په څرګنده د اسامه بن لادن په اشاره ؤ، د ۱۹۹۴ز په نيمايي کې پای ته ورسيد، هغه فليپين ته لاړ او د ابوسياف ګروپ مسلمانو ببلتون پالو په فني روزنه يې لاس پورې کړ، دا هغه سلګونه مجاهدين وو چې په افغانستان کې يې د عبدالرب رسول سياف، د اتحاد اسلامي په ليکو کې په جهاد کې برخه اخيستې وه، د ۸۰يمې لسيزې په نيمايي کې د ګروپ يو مرکز د عبدالرزاق ابوبکر جنجلاني په مشرۍ پاکستان پرېښود او د فليپين جنوب ته راغلي وو او د يوه اسلامي جمهوريت جوړولو لپاره يې مبارزه کوله.

دوی د فليپين د حکومت او د مورو د خپلواکۍ غورځنګ (ايم ان اېل ايف) په منځ کې د سولې خبرو اترو د درولو لپاره څو ځله د بمي بريدونو او برمته کولو عمليات وکړل، د ۱۹۹۰ يمې په لسيزه کې دې ګروپ په ټوله جنوبي آسيا کې د تر ټولو توندلاري اسلامي ګروپ شهرت ګټلی ؤ. اسامه بن لادن، ابوسياف ګروپ ته پيسې برابرولې او رمزي يوسف ته يې دا مسووليت سپارلی ؤ چې هغوی ته د بمونو جوړول او الوزول ور زده کړي.

یوسف په باسیلان جزیره کې د ابوسیاف په مرکز کې څو اونۍ تېرې کړې او هغوی ته یې د بمونو جوړول ور زده کړل، د ۱۹۹۴ز په سپتمبر کې هغه مانیلا ته راغی او دلته یې د یوه بل اسلامي ګروپ د دعوت اسلامي ګوند له دوو غړیو سره ولیدل، دې ګروپ په ګرده نړۍ کې د اړیکو څانګې درلودې، د هغوی په مرسته یې شل تنه وګومارل او د اسامه له لوري د راتلونکي ماموریت لپاره یې چې د امریکا د ولسمشر بل کلنټن وژل وو تیاری ونیو، نومړي په نومبر کې مانیلا ته سفر درلود، یوسف د ماموریت لپاره پر پلان ښه کار وکړ، خو د ډېرو سختو امنیتي تدابیرو له لامله یې خپل پلان پرېښود. تردې وروسته یې د دوهم پاپ جان د وژلو پلان جوړ کړ چې راتلونکی کال مانیلا ته را روان ؤ.

تردې وړاندې رمزي یوسف یو ډېر وړوکی خو ډېر ځواکمن بم جوړ کړی ؤ، د ده اراده داوه چې دغسې ډېر بمونه په ګرده نړۍ کې په ډېرو الوتکو کې کیږدي، د دسمبر پر ۱۱مه ده د فلیپین په یوه بوینګ الوتکه کې چې ۲۷۳تنه مسافر او ۲۰تنه عمله پکې سپاره وو، او له مانیلا نه د سیبو له لارې توکیو ته روانه وه، د بم ابښودو تجربه وکړه، دی له مانیلا نه په الوتکه کې سپور شو تر خپلې کرسۍ لاندې یې بم کېښود، چې سېبو ته ورسیدل یوسف ترې ښکته شو، له سیبو نه د توکیو په لور چې الوتکه والوته، دوه ساعته وروسته بم وچاودید. د یوسف پر کرسۍ ناست کس یې وواژه، د الوتکې تله سورۍ شوه، پیلوټ وتوانید چې الوتکه په اوکیناوا کې راکوزه کړي. څو ورځې وروسته رمزي یوسف بېرته مانیلا ته راغی او له هغه ځایه اسلام آباد ته لاړ.

له اسلام آباده له یوه پخواني انډیوال عبدالحق مراد سره بېرته مانیلا ته راستون شو او د ابوسیاف د ګروپ په روزنه یې بیا لاس پورې کړ. د ۱۹۹۵ز د جنوري په لومړۍ اونۍ کې د ده کور چې بمونه به یې پکې جوړول اور واخیست. له دې لامله دی له خپلو ملګرو سره له هغه ځایه وتښتید. اور وژونکې عمله ورغله اور یې مړ کړ. بیا پولیس ورغلل او د بم جوړولو له کارخانې خبر شول. په تالاشۍ کې لپ ټاپ کمپیوټر، د بمونو جوړولو ترکیبونه، کیمیاوي مواد، برېښنایي ټایم ښوونکی، له نورو یو شمېر اسنادو او وسایلو سره راپیدا شول، څه موده وروسته عبدالحق مراد ونیول شو. د هارډ ډسک له لومړنیو ارزونو څخه معلومه شوه چې له جنوب منځنی آسیا څخه امریکا ته پر تلونکیو الوتکو د بریدونو پلانونه جوړول، د کمپیوټر او نورو اسنادو له نورو پلټنو څخه، د رمزي یوسف د وژونکیو پلانونو او د نړیوال سوداګریز مرکز له بمي چاودنې سره د ده د لاس درلودو په اړه ډېر ارزښتمن اسناد او معلومات ترلاسه شول.

یوسف پاکستان ته وتښتید، خو د جنوري په پای کې له خپل ملګري سره تایلند ته راغی، دلته یې له بنکاک نه امریکا ته پر تلونکې یوې الوتکې د برید پلان جوړ کړ چې ناکام شو. پردې دواړه بېرته پاکستان ته راغلل، خو د ده ملګري څو ورځې وروسته د امریکا له سفارت سره اړیکې ونیوې او خپل آدرس یې ور وښود.

د فبروري پر ۷مه ایف بي ای او ډی ایس اېس (د ډپلوماتیک امنیت اداره) غړیو د یوه ټیم په بڼه، د آی اس آی له چارواکیو سره په ګډه، نوموړی له هغه هوټل څخه ونیو چې د اسامه بن لادن د کورنۍ د یوه غړي ملکیت ؤ.

په پاکستان او یو شمېر نورو ځایونو کې توندلارو د ده د نیولو په غبرګون کې غچ اخیستونکي بریدونه ترسره کړل چې وروسته یې هغه امریکا ته وسپاره، د مارچ په اتمه په کراچۍ کې د امریکا د قنسلګرۍ پر درې غړیو یوه تن د ټوپکو ډزې وکړې، دوه یې ووژل او یو یې ټپي شو، درې اونۍ وروسته د ابوسیاف ۲۰۰ تنو چریکانو د فلیپین په جنوب کې د آیبیلي په ښار کې پر عیسویانو برید وکړ ۵۰ تنه یې ووژل او په سلګونو یې ټپیان کړل.

رمزي یوسف د ۱۹۹۶ز په مې کې محاکمې ته راکش شو، د سپتمبر پر ۵مه پرې جرم ثابت شو او د ۱۹۹۷ز د فبرورۍ پر ۱۲مه پر هغه ۲۴۰ کاله د سخت بند سزا وختله.

په دې موده کې اسامه بن لادن، د امریکا، سعودي عربستان او شمالي افریقا پر خلاف چې ده د (لوی شیطان) پلویان وبلل جګړې ته دوام ورکړ، د ۱۹۹۳ز په جون کې د اردن پر ولي عهد شهزاده عبدالله او د ۱۹۹۵ز به جون کې د ایتوپیا د سفر پر مهال د مصر پر ولسمشر حسني مبارک د وژونکیو بریدونو تر شا د هغه لاس درلودل ښودل شوي دي. تردې مهاله د ده له فعالیتونو څخه په واشنګټن، ریاض او نورو پلازمېنو کې سختې اندېښنې راپیدا شوې وې. د ۱۹۹۴ز په اپریل کې له هغه د سعودي عربستان تابعیت سلب کړای شو، راتلونکی کال پر سوډان فشارونه زیات شول چې هغه له هیواده وشړي.

د ۱۹۹۵ز د نومبر پر ۱۳مه د سعودي په پلازمینه ریاض کې، د ملي امنیت د ارتباطاتو مرکز مخې ته یو بم وچاودید چې پینځه تنه امریکایان او دوه

تنه هندوان، پکې ووژل شول او تر ٦٠ تنو زيات ټپيان شول. درې پوړيزه ودانۍ ډېره بده زيانمنه شوه. د دې پړه دوو ډلو، د بدلون لپاره اسلامي غورځنګ،او د خليج پړانګانو، پر غاړه واخيسته. خليج پړانګانو دا اعلاميه خپره کړه چې که امريکايان له سعودي څخه ونه وزي نو دوی به دغسې بريدونه ډېر کړي. له پېښې وروسته څلور تنه سعودي توندلاري، عبدالعزيز بن فهد بن ناصر، خالد بن احمد بن ابراهيم، رياض بن سليمان او مصلح بن زياد ونيول شول، د مې پر ٣٠مه د هغوی سرونه ترې غوڅ شول.

په دې څلورو کې درې تنو په افغان جهاد کې برخه درلوده. څلورم يې په بوسنيا کې جهاد کاوه، ويل کيږي چې سعودي واکمن پردې خبر وو چې په دې پېښه کې اسامه بن لادن لاس درلود.

سعودي عرب پرېکړه وکړه چې اسامه ته (خبرداری) ورکړي، په خرطوم کې څلورو وسله والو د ده پر کور ډزې وکړې، چې په ځوابي ډزو کې درې تنه ووژل شول څلورم ونيول شو چې بيا سوډاني ځواکونو وواژه.

د ١٩٩٦ز په پيل کې پر اسامه بن لادن يو ناکام وژونکی بريد وشو، د دې بريد تر شا هم د سعوديانو لاس ؤ، سعودي تردې بريد وړاندې اسامه ته وړانديز کړی ؤ چې که جګړه بس کړي نو د ده تابعيت به بېرته برحال کړي، اسامه دغه وړانديز رد کړ، له دې سره سعودي عرب له امريکا سره په ګډه پر سوډان فشار راوړ، چې په پايله کې يې اسامه له هيواده وشاړه. په مې کې هغه له خپلې کورنۍ او ٢٠٠ تنو ملګريو سره افغانستان ته راغی. ډېر زر يې بل بريد وکړ، د جون پر ٢٥مه شپه، د سعودي عربستان د زهران پر هوايي ډګر د امريکا د هوايي ځواکونو د هستوګنې ودانۍ (خوبربرج)

مخې ته یو ځواکمن بم وچاودید، په دې کې ۱۹تنه امریکایي پوځیان ووژل او ۳۸۵تنه ټپیان شول. چاودنې ته نږدې ودانۍ بشپړه ویجاړه شوه، له چاودنې څخه وړاندې له پینځه زره ګیلنه تیلو ډک یو ټانکر له بهرنۍ شیرازې سره نږدې ودرول شو، یوازې دوې دقیقې وړاندې هلته دوه کسان په یوه وړوکي موټر کې ولیدل شول چې لاړل، د دې چاودنې پړه د شهید عبدالله الحذیفه ډلې او حزب الله پر غاړه واخیسته.

اسامه دغه برید ډېره د زړورتیا کارنامه وبلله، په دې کې د ده د لاس درلودلو شکونه هغه مهال زیات شول چې د امریکا د ملي امنیت ادارې، د اسامه بن لادن او د مصر د حرکت جهاد اسلامي د مشر ایمن الظواهري ترمنځ تلیفوني اړیکې ونیولې، په دې تلیفوني خبرو کې الظواهري اسامه ته د چاودنې مبارکي وویله، په ۱۹۸۳ز کې د مصر د ولسمشر انورالسادات له وژنې دوه کاله وروسته، الظواهري د وژنې پر جرم محاکمه شو او درې کاله بند پرې وخوت. خو هغه یوازې ۱٦میاشتې په زندان کې پاتې شو. په ۱۹۹۸ز کې هغه ځینو ملګرو له اسامه بن لادن سره د مخ پر زیاتیدونکیو اړیکو له لامله له حرکت جهاد اسلامي څخه لرې کړ. له اسامه سره د الظواهري لومړنی ملاقات پر ۱۹۸۵ز کې شوی ؤ، وروسته هغه په القاعده کې شامل شو، د اسامه مرستیال او د دې ډلې سیاسي مشر شو.

۱۸ میاشتې وروسته په ترهګرۍ کې د اسامه د لاس درلودو یو څرګند سند پیدا شو. د ۱۹۹۸ز د اګسټ پر ۷مه د کینیا په پلازمینه نایروبي کې د امریکا د سفارت مخې ته یوه لویه بمي چاودنه وشوه چې، دوه سوه تنه پکې ووژل شول او تر څلور نیم زرو تنو پورې ټپیان شول، تردې پینځه

دقیقې وړاندې د تانزانیا په پلازمینه دارالسلام کې د امریکا د سفارت مخې ته بمي چاودنه وشوه چې په هغو کې ۱۱ تنه ووژل شول او ۸۵ نور ټپیان شول.

دواړه چاودنې د القاعده ځانمرګیو بریدګرو وکړې، دا هغه مهال تائید شوه چې د نایروبي د چاودنې د تنظیم ګروپ مشر محمد صدیق عودې، چې له چاودنې یوه ورځ وړاندې پاکستان ته تللی ؤ، ونیول شو. پاکستاني چارواکیو له پلټنو وروسته هغه امریکا ته وسپاره، په دې موده کې په ځینو نورو ځایونو کې هم د القاعده غړي ونیول شول او د پلټنو په بهیر کې له هغوی څخه نور معلومات هم ترلاسه شول. په دوی کې یو تن محمد راشد داود العوالي هم ؤ، چې په خالد سلیم مشهور ؤ چې په نایروبي کې ونیول شو، نوموړی یوه اونۍ وړاندې له پاکستان نه راغلی ؤ او په هغه موټر کې سپور ؤ چې بم یې پکې بار کړی ؤ. کله چې د ده ملګري ځانمرګي بم وچاوداوه، دی څو شېبې مخکې ترې کوز شوی ؤ. په چاودنه کې د ټپي کېدو په سبب یې هغه روغتون ته ورساوه. څو ورځې وروسته وپېژندل شو، او ونیول شو امریکا ته یې وسپاره. د دې ګروپ څلورم غړی فضل عبدالله محمد له کینیا څخه وتښتید.

د دارالسلام د چاودنې یو تورن محمد صادق هویدا هم ونیول شول، دا هم د فلسطین ؤ او له بم جوړولو وروسته له چاودنې مخکې پاکستان ته تللی ؤ، نوموړی یې هغه مهال ونیو چې کله یې غوښتل په جعلي پاسپورټ افغانستان ته لاړ شي، هغه هم امریکا ته وسپارل شو چې هلته ترې نور معلومات هم ترلاسه شول.

**داګسټ پر ۲۰مه د اسامه بن لادن پر خلاف عملیات وشول، د عربو په سمندرګي کې ولاړې له امریکایي بیړۍ څخه ۷۵ کروز توغندي د ترهګرو پر مرکزونو وتوغول شول.**

**کوم مرکزونه چې نښه کړای شول، په هغو کې د البدر دوهم لمبر کمپ چې داسامه په ملاتړ د کشمیري جنګیالیو، حرکت الانصار ډلې د امیر معاویه مرکز هم پکې شامل ؤ. د امیر معاویه مرکز له هغو درې مرکزونو څخه یو ؤ چې په څرګنده د پاکستان د آی اس آی لخو چلیده.**

**له سرې بحیرې څخه په سوډان کې د درمل جوړولو پر هغه کارخانه هم توغندي وتوغول شول، دغه کارخانه د خرطوم شمال ختیځ ته په څو میلۍ کې پرته ده، پردې شک ؤ چې د اعصابو د فلج کولو غاز اجزاوې پکې چمتو کیږي، خو دا شک غلط ؤ. اسامه ته د برید خبر مخکې رسیدلی ؤ، چې له همدې لامله هغه د افغانستان شمال ته تللی ؤ، پر کومو مرکزونو چې بریدونه وشول، په هغو کې د انسانانو د وژل کیدو له لامله د اسامه په پیروانو کې د امریکا پر خلاف کرکه نوره هم زیاته شوه، او د توند لارو مسلمانانو په منځ کې د اسامه محبوبیت نور هم زیات شو.**

**د دې بریدونو غبرګون هم ډیر زر وښودل شو، داګسټ پر ۲۵مه د جنوبي افریقا په کیپ ټاون کې په (پلینټ هالي ووډ) رستوران کې بمي چاودنه وشوه چې دوه تنه پکې ووژل او ۲۷ټپیان شول، د (نړیوال ظلم پر خلاف مسلمانان) نومي ګوند د دې برید پړه ومنله او وې ویل چې دغه عملیات د امریکا د بریدونو په ځواب کې وو. په کیپ ټاون کې د پام وړ شمېر مسلمانان اوسیږي. دلته د ۹۰یمې لسیزې په بهیر کې یو شمېر توند لاري**

**ګوندونه جوړ شول، یاده شوې ډله هم په همدې کې شامله وه چې د قومپال سرسخت مخالف تنظیم (پي اې جي اې ډي) سره یې هم اړیکې وې.**

**د اسامه پر مرکزونو له بریدونو وروسته هغه د افغانستان په شمال او ختیځ کې نوي مرکزونه جوړ کړل. د القاعده لوی مرکز یې کندز ته ولېږداوه، جلال آباد ته نږدې یې په توره بوړه، درونټه، هډه او ملاوه کې، او کابل ته نږدې یې په جلریز کې مرکز جوړ کړ، دوه نور مرکزونه یې له پاکستان سره کربښې ته نږدې په سټو کنډو او مستون چندایي کې جوړ کړل. د اسامه شبکه د پېښور له لوري په پاکستان کې هم پراخیدله، دلته یې له افغانستان څخه د راتلونکیو القاعده غړیو لپاره دتګ راتګ یو مرکز هم جوړ کړ. پر ۱۹۹۹ز کې د امریکا او بریتانیا له لوري د طالبانو پر حکومت فشارونه زیات شول چې اسامه له هیواده وشړي. بریتانیا اندېښنه درلوده چې په لندن کې جوړ شوي ځیني تنظیمونه په ټوله بریتانیه کې په پټو ځایونو کې مسلمانان روزي، دې مرکزونو ته، راغلي ځوانان دې ته هڅول کیږي چې یمن او یا افغانستان ته د پوځي روزنې لپاره لاړ شي. د یوه راپور پر اساس هر کال ۲۰۰۰ تنه برتانوي مسلمانانو دغسې روزنه ترلاسه کوله.**

**د ۱۹۹۸ز د دسمبر پر ۲۴مه د اتو تنو برتانوي مسلمانانو یوه ډله، د یمن په عدن کې د بمي چاودنې د هڅې په تور ونیول شوه. د دوی هدف د برتانیې سفارتخانه، یوه کلیسا او دوه هوټلونه وو. له دوی څخه یوه تن د یمن په ختیځ کې د شابوا په سیمه کې پوځي روزنه هم لیدلې وه، دلته د (عدن اسلامي پوځ) نومې ډلې یو مرکز هم ؤ چې د دسمبر پر ۲۸مه یې د خپلو**

اتو تنو بندیانو د خلاصون لپاره ١٦ تنه د لویدیزو هیوادونو اوسیدونکي برمته کړل. سبا ته یې له هغو څخه څلور تنه برمته شوي، درې تنه برتانویان او یو تن استرالیایي هغه مهال ووژل شول چې کله یمني پوځ د دوی د راخوشي کیدو لپاره عملیات وکړل. د اګسټ پر ٩مه یې اتو واړو کسانو ته سزا واوروله، خو له دوی څخه یې ٣تنه د تېر کړي زندان پر بنسټ خوشي کړل، نورو ته یې له ٢-٧ کلونو دبند سزا واوروله.

شپږ میاشتې وړاندې د اسامه د بې درکۍ خبرونه راغلي وو، خو د ١٩٩٩ز په مارچ کې، لویدیزو استخباراتي ادارو هغه د افغانستان په ختیځ کې پر خپلو مرکزونو د راګرځیدو په حالت کې لیدلی ؤ. له دې سره دغه خبر هم خپور شو چې، هغه د کشمیري ګروپ حرکت الانصار سره هم مرسته کوي، د حرکت دوه ګروپونه دي دواړه پر ١٩٨٠ز کې د افغانستان د جګړې لپاره چمتو کړای شوي وو، یو حرکت المجاهدین دی چې مشر یې فضل الرحمان خلیل دی، بل یې تر لومړي زیات توندلاری حرکت الجهاد. د ١٩٩٩ز په پیل کې دا معلومه شوه چې حرکت یوازې له کشمیر څخه نه بلکې له افغانستان، پاکستان او برتانیې څخه هم خلک دعوتوي. دا چې برتانوي مسلمانان نه یوازې د کشمیر د عملیاتو لپاره بلکې په کوسوو، پاکستان او چیچینیا کې د عملیاتو لپاره هم دعوتوي، پردې شواهد هغه مهال را افشا شول چې سنډې ټیلګراف دغه خبره رالوڅه کړه چې د (ریل ټریک) د معلوماتي ټکنالوجۍ امنیتي سلاکار محمد سهیل، د کمپنۍ له کمپیوټر او ایمیل آدرس څخه د داوطلبانو د بلنې او ګومارنې لپاره کار اخیست. هغه په لندن کې د (نړیوال جهاد فنډ) لپاره کار کاوه چې مشر یې د سعودي د

حکومت یو مخالف محمد المصري ؤ، هغه پر حرکت الجهاد سربېره له ځو نورو ډلو سره هم مالي مرسته کړې وه، نوموړي له خبریالانو سره په خبرو کې مخامخ پردې اعتراف کړی ؤ چې د اسامه بن لادن او المصري لپاره کار کوي.

حرکت د ۱۹۹۰ ز په نیمایي کې ډېر مشهور شو، کله یې چې په کشمیر کې یو شمیر د لویدیز اوسیدونکي وتښتول، د هغوی د خوشي کولو په بدل کې یې د لس تنو توندلارو کشمیریانو د خوشي کولو غوښتنه وکړه، خو پولیسو عملیات وکړل او یرغمل شوي کسان یې راخوشي کړل. د ۱۹۹۵ز په جولای کې حرکت المجاهدین د (الفاران) په نامه ځلور تنه برتانویان، یو امریکایي او یو جرمنی سړی وتښتول، د دوی د خوشي کیدو په بدل کې یې د خپل مشر مولانا مسعود اظهر په شمول ۲۱ تنو کشمیري جنګیالیو د خوشي کیدو غوښتنه وکړه، یو تښتول شوی پردې بریالی شو چې وتښتي، د بل تن سر له تنې غوڅ شوی وموندل شو، د یوه بل تن د بدن ټوټې د ۲۰۰۰ز په جنورۍ کې وموندل شوې، په هند کې د ډی ان اې له ازموینې معلومه شوه چې، دا د یوه برتانوي مړی ؤ، خو په برتانیه کې دغه ازموینه غلطه ثابته شوه، د پاتې ځلورو برمته شویو درک ترننه ونه لګید چې څه شول.

د ۱۹۹۹ز په جولای کې تر القاعده د توندلارې ډلې د راپیدا کیدو نښې راپیدا شوې، دغه ډله د (تکفیر) په نامه وه چې په ۱۹۷۰ز لسیزه کې د مصر په زندانونو کې جوړه شوه، هلته په زیات شمیر توندلاري مسلمانان بندیان وو. د دوی زیات شمیر یې د افغانستان په جهاد کې برخه اخیستې وه، خو د جهاد له پایته رسیدو وروسته دغه ډله ورکه شوه. د ۱۹۹۹ز په لومړۍ

نیمایي کې دغه ډله له دې خبرونو سره بیا راڅرګنده شوه، چې دوی د اسامه په لټون پسې سرګردانه وو او دوی هغه (دروغجن پیغمبر) باله، داسې خبرونه خپاره شول چې دوی درې ځلې پر اسامه وژونکي بریدونه وکړل، او د القاعده او تکفیر ترمنځ څو ځلې نښتې شوې دي.

* * * *

د ۱۹۹۹ز په اکتوبر کې د طالبانو امارت د ترهګرو د مرکزونو تړلو ته راضي شو، دوی زیات شمېر توندلاري بېرته پاکستان ته واستول، دغه پېښه افغانستان ته آی اس آی د مشر جنرال خواجه ضیاالدین له سفره وروسته وه، نوموړي د صدراعظم نوازشریف په وینا د طالبانو له مشر ملاعمر سره ولیدل، خو طالبانو، ملګرو ملتونو ته داسامه بن لادن له سپارلو ډډه وکړه، چې امریکا غوښتل محاکمه یې کړي، پردې انکار امریکا پر افغانستان بندیزونه ولګول. د دې بندیزونو له امله په امریکا کې د آریانا افغان هوایي شرکت ۴۵۰ ملیون ډالره کنګل کړای شول، او له افغانستان نه د باندې طالبانو شتمنۍ ټولې کنګل شوې، په پایله کې په کابل کې خلک راوپاریدل، په اسلام آباد کې د امریکا پر سفارت، د ملګرو ملتونو پر دفتر او د ملګرو ملتونو د خوراک د پروګرام پر مرکز د بمونو او توغندیو بریدونه وشول.

طالبانو د اسامه له سپارلو څخه انکار کړی ؤ، خو د ملګرو ملتونو بندیزونو د دوی په منځ کې تذبذب راپیدا کړ، یوه لور ته دوی په نړیواله کچه دا غوښتنه کوله چې حکومت یې په رسمیت وپیژندل شي او مرستې ورسره وشي، بل لوري ته دوی د نړۍ تر ټولو ستر ترهګر ته پناه ورکړې وه، چې د

سر بیه یې درې ملیون ډالره ټاکل شوې وه، دغه خطرناکه وضعه پخپله اسامه هم درک کړې وه چې د وژل کیدو خطر یې احساساوه او تل به خوځنده ؤ. د ده د کورنۍ غړي او ډېر ښه وسله وال ساتونکي به هم تل ورسره وو. هغه ته اوس هم له بېلابېلو وسایلو څخه مرستې رسیدې، چې په هغو کې ځینې سرچینې په سعودي عربو کې وې، په دې کې پینځه سوداګر وو چې په ښکاره یې د خپل امنیت لپاره ده ته د جزیې په ډول پیسې ورکولې.

د ۱۹۹۹ز په پای کې په ډېرو هیوادونو کې د ترهګریزو ډلو د بریدونو خطر ؤ، په امریکا کې دغه خطر هغه وخت ریښتیا ثابت شو چې د دسمبر پر ۱۴مه یو الجزایری احمد رسام د شمال لویدیز ریاست واشنګټن د انجلس په بندر کې ونیول شو، هغه د کاناډا له ویکتوریا ښار نه د کیښتۍ په واسطه دلته راغلی ؤ، د هغه له موټر څخه نایترو ګلسرین او د بم جوړولو نور سامان راووت، داسې څلور وخت ښودونکي هم ترې راووتل چې پخوا القاعده له هغو څخه کار اخیستی ؤ، رسام چې په افغان جهاد کې برخه اخیستې وه په مونټریال کې اوسیدو، دده اړیکې د الجزایر د (جي آی اې) ډلې سره ښودل شوې دي، د پولیسو په وینا هغه غوښتل په سیاټل کې د زریزې د جشن پر مراسمو برید وکړی. د ده له نیول کیدو درې ورځې وروسته معلومه شوه چې یو الجزایری ملګری یې له مونټریال څخه امریکا ته ننوتلی دی، څلور ورځې وروسته دریم الجزایری له کاناډا نه امریکا ته ورسید، له نیول کیدو وروسته د هغه له موټر څخه په زیاته اندازه چاودیدونکي توکي ونیول شول. د ده د سفر ملګرې یوې کاناډایي مېرمنې

## د سي آی اې پټې جګړې

**په اړه دغه خبر ترلاسه شو چې له یوه الجزایري توند لاري سازمان سره اړیکې لري.**

**لس میاشتې وروسته اسامه بن لادن یو ځل بیا برید وکړ، د ۲۰۰۰ز د اګسټ پر ۸مه، پر لرې واټن ویشتونکیو توغندیو بار (یو اس اس کول) لویه بیړۍ په ورجینیا کې له خپلې اډې (نارخاک سمندري اډې) څخه د یمن په لور روانه شوه، د اکتوبر پر ۱۲مه د تیلو اچولو لپاره دعدن په بندر کې ودریده او له ساحل نه ۶۰۰ متره لرې په سمندر کې یې لنګر واچاوه. لس نیمې بجې یې د تیلو اچول پیل کړل، ۴۵ دقیقې وروسته له چاویدونکو موادو ډکه یوه وړوکې کیښتۍ ورسره وجنګول شوه او لویه چاودنه وشوه، د بیړۍ له عملې نه اوه تنه ووژل شول او ۳۹ نور ټپیان شول. په کیښتۍ کې ۳۹ فټه لوی درز راغی، ټول ټال ۲۴۰ ملیون ډالره بیړۍ ته زیان واوښت، په وړوکې کیښتۍ کې دواړه ځانمرګي بریدګر هم ووژل شول.**

**له پلټنو څخه معلومه شوه چې بم له ۴ تر ۷ سوه پونډه پورې درونډ ؤ او ډېر د لوړې درجې چاودیدونکي مواد (سی ۴) پکې کارول شوي وو چې په امریکا کې جوړیدل او سعودي عربستان، کویټ او د شاه د وخت ایران او یو شمېر نورو هیوادونو ته ورکول کیدل.**

**د افغان جهاد پر مهال دغه مواد مجاهدینو ته هم ورکړای شول. پردې سربېره شل کاله وړاندې د سي آی اې یوه پخواني غړي فرنک ټرپل ته په دې تور سزا ورکړای شوه چې هغه ۲۱ ټنه C4 ډوله مواد لیبیا ته د ترهګرو د روزنې لپاره ورکړي وو.**

## د سي آی اې پټې جګړې

پر یو اس اس کول له برید څخه په ۲۴ساعتونو کې دننه، د اکتوبر پر ۱۳مه سهار شپږ بجې د یمن په پلازمینه صنعا کې د برتانیې پر سفارت هم چاودنه وشوه، دغه بم له دیوال نه ور وغورځول شو چې ودانۍ ته یې ښه زیان واړاوه.

د دې چاودنو پړه درې ګروپونو، دعدن اسلامي پوځ-ابیان، جیش محمد، او اسلامي غورځنګ ومنله، اسلامي پوځ د ابوالحسن المحضر په مشرۍ پر ۹۸کال په جنوبي یمن کې د ۱٦تنو لویدیځو هیوادونو اوسیدونکیو د تښتونې مسوول هم ؤ. دغه ډله له جهادي سازمان څخه بېله شوې وه چې د ۱۹۹۰ز په لسیزه کې یې یو شمېر بریدونه کړي وو، په دې ډله کې پخواني افغان مجاهدین او د بېلابېلو هیوادونو توند لاري شامل وو.

د دوی ډېرې نږدې اړیکې د لندن د فنسبري پارک د جومات له امام ابوحمزه المصري او په عدن کې د امریکا او برتانیې پر اهدافو د بریدونو په توطیه کې د نیول شویو برتانوي مسلمانانو سره ښودل کیدې.

یمني چارواکیو د چاودنو د مسوولینو د موندلو لټون پیل کړ او ٦۰ تنه یې په دې شک ونیول، د اکتوبر پر ۱٦مه یې په عدن کې له یوه کوره د بم جوړولو سامان او اسناد ونیول، دغه کور دوو ځانمرګیو بریدګرو د یوې میاشتې لپاره په کرایه نیولی ؤ. له دوی څخه یو تن عرب ؤ، په نږدې انګړ کې هغه یوه وړوکې کیښتۍ ساتلې وه چې له برید وروسته هغه بې درکه شوه.

له دغو دوو تنو څخه یوه تن خپل جعلي اسناد د عبدالله احمد خالد په نامه د کور مالک ته ورکړي وو. د اکتوبر پر ۲۳مه پلټونکو اعلان وکړ چې دوی

له ډېرو کورونو څخه جعلي اسناد او يو شمېر موټر نيولي دي، پردې يې د مرکزي احصائيې د ادارې له مامورينو څخه پلټنې وکړي، معلومه شوه چې دوی ځانمرګيو بريدګرو ته نه يوازې دا چې جعلي اسناد برابر کړي وو بلکې دولتي موټر يې هم ورکړي وو.

د نومبر په لومړۍ اونۍ کې، څلور تنه نور ونيول شول، د نومبر پر ۱۱مه معلومه شوه چې ځينو شکمنو کسانو په يمن کې پر امريکايي اهدافو په نورو بريدونو کې په لاس درلودو اعتراف وکړ، وروسته بيا دا هم افشا شوه چې يو کال وړاندې د ۱۹۹۹ز په نومبر کې هغوی پر هغو امريکايي پوځيانو د بريد پلان جوړ کړ چې د يمن د باروتي ماينونو د پاکولو ملي مرکز ته روان وو. خو يمني پوځ د دوی په لاره ښخ کړي ماينونه کشف او بېرته ټول کړل او پلان يې شنډ کړ. دغه پوځي منصبداران هره ورځ د عدن له رايل هوټل څخه دغه مرکز ته تلل راتلل، پردې هوټل د بريد پلان جوړ شوی ؤ خو هغه ناکام شو.

تردې وروسته درېيم بريد د ۲۰۰۰ز د جنوري پر ۳مه د امريکا پر خطرناکه کيښتۍ (يو اېس اېس) پلان شوی ؤ، خو له چاوديدونکيو موادو ډکه شوې کيښتۍ له کاره ولويده چې بيا له دې پلان نه هم صرف نظر وشو.

له نورو پلټنو څخه دا معلومه شوه چې پر يو اېس اېس کول د حملې طراح يو پخوانی افغان مجاهد، محمد عمر الحرازي چې په (عبدالرحمن حسين النشاري) مشهور ؤ، يو يمنی اوسيدونکی دی او په عربي متحده اماراتو کې اوسيږي. خو وخت پر وخت عدن ته ځي راځي. وروسته دا هم معلومه شوه چې دی په نايروبي کې د امريکا پر سفارت د يوه ځانمرګي بريدګر د

کاکا زوی هم دی. پر کېنبتې له برید څخه ځلور ورځې مخکې له یمن څخه بې درکه شو.
د چارواکیو په توقیف کې تر ټولو لوی تورن جمال البداوي ؤ، هغه د یمن اوسېدونکی ؤ او په افغان جهاد کې یې برخه درلوده، په افغانستان کې یې له الجزایري سره خبرې اترې وشوې، د نومبر په نیمایي کې یمني چارواکیو دا دعوه وکړه چې له دوو ځانمرګیو بریدګرو څخه یې یو تن پېژندلی دی، د هغه نوم سعید اود الخمری ؤ، هغه د یمن د حضر الموت سیمې اوسیدونکی ؤ، د اسامه بن لادن د کورنۍ ربښې له همدې ځایه سره تړاو لري.
بالاخره یمني چارواکیو د تورنو کسانو شمېر راکم کړ او ٦ تنه یې پرېښودل، امریکا وغوښتل چې دغه کسان دوی ته وسپارل شي خو رد کړای شوه، ځکه چې د یمن په اساسي قانون کې یې ځای نشته.
د ۲۰۰۱ز د فبروري پر ١٦مه دوه نور تورن کسان ونیول شول چې له افغانستان نه یمن ته بېرته راستانه شوي وو، د دوی نومونه محمد احمد الاحدال او احمد محمد امین وو، له دواړو څخه له پلټنو څخه وروسته چارواکیو وویل چې محمد عمر الحرازي له بل شریک تورن سره په افغانستان کې دی. یو ځل بیا له افغان تړاو څخه امریکا پردې باوري شوه چې د دې بریدونو ریښه هم اسامه بن لادن ته رسیږي.
پر یو اېس اېس کول له برید اتلس میاشتې وروسته، په نړۍ کې د ترهګرۍ تر ټولو ستره پېښه وشوه. د ۲۰۰۱ز کال د سپتمبر پر ۱۱مه د دوشنبې په ورځ پاو کم نهه بجې د امریکا د هوايي چلن یوه بوینګ ۷٦۷ ډوله مساپر

## د سي آی اې پټې جګړې

وروڼکې الوتکه د نړیوال سوداګریز مرکز پر ۱۳٦۸فټه لوړ شمالي برج ولګیده، چاچې دغه ننداره لیدله فکر یې کاوه چې دا یوه خطرناکه ناڅاپي پېښه وه، خو ۱۱ دقیقې وروسته په اتو بجو او ٥٦ دقیقو دغه خیال غلط وخوت، په امریکا او نوره نړۍ کې په لسګونو زره خلکو ولیدل چې د امریکا د هوايي چلن اړونده ۷٦۷ بوینګ بله الوتکه راغله او پر جنوبي برج ورننوتله، د ویریدلیو خلکو په وړاندې د دواړو برجونو پاسني پوړونه په لنبو او دودونو کې ورک شول، په لس بجو او اوه دقیقو جنوبي برج راونړید. شل دقیقې وروسته شمالي برج هم رانسکور شو، په زرګونو کسان ووژل شول، ډېرو کسانو له دې وېرې چې ژوندي د اور د لمبو خوراک نشي ځانونه را وغورځول او ووژل شول.

په واشنګټن کې د پوځامک سیند نه پورې غاړې ته د امریکا د هوايي چلن درېیمه الوتکه بوینګ ۷٥۷ په نهو بجو او ۳۸ دقیقو د پنټاګون پر لویدیځ لوري دیوال ور وجنګیده، د ودانۍ له پینځو کانکریټي دیوالونو څخه تر درې دیوالونو ورننوتله، چې له لامله یې د ودانۍ یوه برخه رانسکوره او ویجاړه شوه، په دې کې د ٥۸ تنو مساپرو، شپږ تنو عملې په شمول ۹۰ تنه ووژل شول، دغه مهال ایف بي آی ته دا معلومات وشو چې درې واړه الوتکې تښتول شوې وې، خو په لس نیمو بجو د یوې بلې الوتکې خبر هم راغی، ۲۰دقیقې وړاندې د امریکا متحده ایالاتو د هوايي چلن له نیویارکه سان

## د سي آی اې پټې جګړې

فرانسسکو ته تلونکې ۵۹۳ الوتکه له پټس برګ سره نږدې راولویده او له منځه لاړه.

په راتلونکیو ورځو کې دا څرګنده شوه چې څلور واړه الوتکې عربي ځانمرګیو بریدګرو تښتولې وې، چې د ۵۹۳ د الوت، سرښندویو سپرلیو یوې ډلې د څلورمې بربادوونکې حملې هڅه ناکامه کړه، په ځو نورو راتلونکیو ورځو کې د ا څرګنده شوه چې دغه بریدونه د یوه نوي ترهګر تنظیم د ډېر دقیق پلان شویو عملیاتو برخه وه، سمدستي پر اسامه بن لادن شک وشو او ډېر زر ایف بي آی ته د امعلومات په لاس ورغلل چې د ترهګرو یوه شبکه په امریکا کې فعاله شوې ده ، چې ځینو غړیو یې دلته د پیلوټې زده کړې هم کړې وې. د ۱۹ تنو برمته کوونکیو ترهګرو نومونه هم معلوم شول، خو د دوی د مستعارو نومونو په باب دومره اندېښنې وې، چې د ریښتینې پیژندنې مخه یې ډب کړې وه. په راتلونکیو اونیو کې پلټنې روانې وې او د اکتوبر پر ۴مه د بریتانیا صدراعظم ټوني بلیر، اعلان کړه چې کره ثبوتونه چې ردیدای نشي، پیدا شوي چې، د سپتمبر د ۱۱مې په بریدونو کې القاعده او اسامه لاس لري. دوی دا اعلان هم وکړ چې له ۱۹ څخه د درې تنو ځانمرګیو اصلي شناخت شوی دی، دوی د اسامه مشهور ملګري دي، د دوی د ۱۵ تنو په باب دا معلومات وشو چې د سعودي عربستان اوسیدونکي وو.

په دې موده کې اسامه له افغانستان څخه په چوپه خوله وضعه څارله، هغه پوهیده چې امریکا او متحدین یې د ده پر خلاف د حملې پر پلان فکر کوي. د سپټمبر په وروستیو کې د امریکا او بریتانیا د سمندري او ځمکني پوځ لوی شمېر په عربو سمندرګي او د فارس په خلیج کې وګومارل شول. د **امریکا لسمه غرنۍ فرقه د افغانستان شمالي سرحد ته نږدې په ازبکستان کې د شوروي پوځونو په پخوانیو اډو، خان آباد او قرشي کې وګومارل شوې. هلته دوی د امریکا او برتانیې د خاصو ځواکونو لپاره د عملیاتي ټیمونو مرکزونه جوړ کړل.**

**د اکتوبر پر ۷مه د امریکا هوایي ځواکونو په افغانستان کې پر اهدافو بریدونه پیل کړل، په پیل کې د طالبانو زیاتره هوایی ډګرونه ویجاړ کړای شول، دغه مهال دغه خبرونه خپاره شول چې د امریکا او برتانیې خاص ځواکونه افغانستان ته ننوتل او د دوی ځینو د شمال ټلوالې له جنګیالیو سره اړیکې ټینګې کړې.**

**د اکتوبر پر ۱۹مه، د کندهار په شمال لویدیځو څنډو کې د ۷۵یم لمبر کوماندو کنډک سل تنو پوځیانو له لومړني عملیاتي ګروپ(ډیلټا فورس) سره په ګډه چاپه ووهله، کوماندویان، د ۱۳۰ سي الوتکو څخه په پاراشوټو کې راکوز کړای شول، خو د ډیلټا فورس ټیم د څرخیو په واسطه ښکته کړای شول، دغه عملیات د پاکستان څنډې ته نږدې له ولاړې امریکایي الوتکې وړونکې بیړۍ( یو ایس ایس کټی هاک) څخه وشول، چاپه اچوونکی ټیم د بابا صاحب او میان کوه ترمنځ ښکته کړای شول، له دوی**

سره د اې سي ۱۳۰ سپيکټر ګن شپ هليکوپټرو بدرګه ملګرې وه، دوی د ودانيو پر هغه لړۍ برید وکړ چې د طالبانو د مخابرې مرکز او د طالبانو د مشر ملا عمر هستوګنځی پکې ؤ. د ناتائيد شويو راپورونو پربنسټ د غه مهال جګړه هم وشوه، چې يو شمېر پوځيان ټپيان هم شول. دغه ټيم پر يوه هوايي ډګر هم بريد وکړ او د وسلو لويه زيرمه يې را وايستله، دوی تر دې وروسته يو پل والوزاوه او دوه ساعته وروسته د څرخيو په واسطه بېرته ستانه شول.

(امريکايي ليکوال سيمورهرش د دې لومړني بريد ټول تفصيل ليکلی، هغه ليکلي چې طالبان ناڅاپي پرې خبر شول، الوتکې يې په آر پي جي وويشتلې، ۱۲ تنه کوماندويان پکې ټپيان شول او بيا په بيړه وتښتيدل، تر دې چې په بيړه کې يې د چينوک څرخۍ شاتنی څرخ له کوم ديوال سره په ټکر کې ترې ولويد، طالبانو به هغه په الجزيره کې د اتلولۍ د جام په څېر ښودلو. ژباړن)

له دې عملياتو وروسته اتحادي پوځ پر افغانستان ځمکنی يرغل وکړ، او د اسامه لټون او د القاعده د له منځه وړو پړاو پيل شو. ولسمشر بوش وويل چې دا به يوه اوږده او ستونزمنه جګړه وي. چې نه يوازې په افغانستان بلکې په نورو ځايونو کې به هم روانه وي، چېرته چې د ترهګرۍ نښه وليدل شي، عمليات به پرې وشي.

## د ژباړن وروستۍ يادونه:

## د سي آی اې پټې جګړې

د ۲۰۰۱ز د اکتوبر پر ۷مه چې پر افغانستان د امریکا او اتحادي پوځي یرغل پیل شو، دا په افغانستان کې د یوه بل خونړي پړاو پیلامه شوه. اوس له هغې ورځې ۱۲کاله او څو میاشتې تیریږي، په دې موده کې د امریکا او ناټو ۴٦ هیوادونو تر یو نیم لک تنو زیات پوځیان په افغانستان کې پراته وو، پردې سربېره د امریکا او انګلستان څارګرې ادارې او خاص ځواکونه (سپیشل فورس) او د بلک واټر په څېر امنیتي کمپنۍ هم په پوره ځواک فعالې وې، لږ تر لږه دوه ځله یو ځل په خوست کې د هوایي ډګر سره څېرمه د سي آی اې پر مرکز ځانمرګی برید او بل ځل په کابل کې د امریکا سفارت ته نږدې د سي آی اې پر مرکز برید د میډیا د تودو خبرونو د سر ټکي ګرځیدلي دي، په خوست کې د سي آی اې په مرکز کې د سي آی اې د دې دفتر د مشرې په شمول اوه تنه د یوه داسې ځانمرګي اردني بریدګر لخوا ووژل شول چې، نوموړي ډبل رول درلود، د سي آی اې لخوا نوموړی په وزیرستان کې د القاعده د مهمو مشرانو د جاسوسۍ لپاره ګومارل شوی ؤ، خو هغه برعکس له القاعده سره وفاداري وښوده او د سي آی اې په مرکز کې یې په ځانمرګي برید کې دې ادارې ته درونډ ګوزار ورکړ.

په هر صورت په افغانستان کې په تېرو دوولس نیمو کلونو کې تر یو نیم سل زره تنو زیات انسانان وژل شوي دي، یوه پټه استخباراتي جګړه لا دوام لري، د راتلونکې په اړه هیڅ داسې روښانه افق نه شته چې څه به کیږي.

## د سي آی اې پټې جګړې

ځکه چې د سي آی اې، ایم آی ٦، آی اس آی، او القاعده جګړه خو آسانه نه ده چې زر دې د هغو د حل او ختمیدو لپاره کوم اقدام وشي.
په لنډو ټکیو کې ویلای شو چې دغه اثر (له ویتنام تر افغانستانه د سي آی اې پټې جګړې) سره له دې چې د محتوا له اړخه ډېر مهم اثر دی، خو په دې کې د سي آی اې یوازې هغه پټې طرحې او فعالیتونه شامل دي چې د ۲۰۰۱ز کال د اکتوبر تر ۷مې، پر افغانستان د امریکا د متحده ایالاتو تر نیغ یرغل پورې ترسره شوي دي.
اصلاً په افغانستان کې د امریکا د پوځ، سي آی اې او امنیتي کمپنیو د عملي پراخ یرغل او حضور دا تېر نږدې ۱۳کاله ډېر مهم دي. په دې موده کې په لسګونو زره افغانان په ډېره بې رحمۍ شهیدان شوي دي، مشران ترور شوي، زموږ چارواکي او حکومت بې اعتباره او بدنام کړای شوی، زموږ د سیاسیونو په منځ کې استخباراتي کړیو په بېلابېلو لارو نفوذ کړی، زموږ ځوان نسل په ډېر غلط تبلیغاتي مسیر بېلارې شوی، چې د دې ټولو داستان ناویلی پاتې دی، باور مو دی چې پخپله امریکایي حکومت به یو وخت د دې مهال ټول محرم اسناد خپاره کړي او موږ به هغه مهال د دې وروستۍ له وحشتونو، غمیزو او ماتمونو ډکې غمیزې په باب خبرېږو چې څه وشول او په دې کې چا چا، کوم کوم له ذلت او سپکاوي ډک رول لوبولی دی.